۳- د میرویس خان د مبارزې طریقه د شروع نه تر (۱۷۰۹) کال-
پورې شرحه کړئ ؟

٤- د صفوي دولت وروستي قواوې په کوم کال او په څه ترتیب
هلاکې شوې ؟

٥- تر میرویس خان وروسته څوک او په کوم کال پاچا شو؟

٦- صفوي پاچا افغانی پاچاته څه پیشنهاد وکړاو افغانی پاچاولې
قبول نه کړ ؟

۷- دافغانو او ایرانو عسکرو شمېر د اصفهان په فتح کښې
څو وه ؟

# اووم فصل

## شاه اشرف هوتکي (١٧٢٥-١٧٢٩م)

شاه اشرف په ایران کښې تر پاچا کېدو وروسته پوهېده چې په ایران کې افغاني دولت ترخطر لاندې دی. ځکه د عثماني ترکیه او روسیه په څېر بهرنو توانمنو دولتونو د ایران د دولت د کمزورتیا او د صفوی شاه حسین د زوی او ولیعهد طهماسب د بلنې څخه ګټه واخیسته او د ایران د لویدیځ او شمال لخوا ورننوتل

طهماسب د ایران غربي ولایتونه ترکیه ته پرېښودل او هغوی هم په پوځي قوت سره همدان او تبریز ونیو، همدارنګ د مازندران، ګیلان باکو او دربند ولایتونه یې روسانو ته پرېښودل او د روسانو پر اختیار غوښتونکي دولت دا ولایتونه ونیول. په دې وخت کښې د شاه محمود پلویان هم د شاه اشرف څخه جلا شو او قندهار ته لاړل. شاه اشرف د پیښو د بېروالي له امله -

زړه و نه غوښتوه او تصميم يې ونيو چې د ټولو کوښښونو او بهرنيو
ستونزو سره مقابله وکړي .

شاه اشرف هوتکي د ايران د تاج او تخت غوښتونکي صفوي طهماسب
ته خپل قهرمان سپه سالار سيدال خان ناصري په مرسته ماتې ورکړه .
وروسته ترهغې شاه اشرف د عثماني دولت څخه وغوښتل چې د ايران
لوېديځ ولايتونه ورته پرېږدي، خو عثماني دولت شاه اشرف ته کوم ارزښت
ورنکړ او شاه اشرف ته يې وويل چې ايران خوشې کړي ، او عثماني دولت د
دغه پيغام سره سم شپېته زره (٦٠٠٠٠) عسکر د اوياو (٧٠) لويو توپونو سره
د اصفهان په لور روان کړل .

شاه اشرف هوتکي د افغانانو د کوچني لښکر سره د ترکي لښکر مقابلې ته -
راووت او جنګ پيل شو. د افغانانو د سپرو قواو د پرېښنا په شان بريدونو
په څو ساعتونو کښې د عثمانيانو ستري اردو ته ماتې ورکړه، او د عثمانيانو
توپخانې پنځوس توپونه له لاسه ورکړل او د ترکانو دولس زره پلي او سپاره
د جنګ په ميدان کښې ووژل شو، او نور وتښتېدل .

دا ماتې دومره سخته وه چې د ترکانو د اردو ټول سامان آلات او زېرمې په ځای پاتې شوې. افغاني پاچا د ترکیې په ماتې شوې اردو پسې ټول جنګي سامان واستوه او په (۱۷۲۷م) کال یې د ترکیې دولت ته دیوسفیین په لیږلو سره پېغام واستوه چې موږ د ترکانو سره دیودین ورونه یو او د مسلمانانو ورونو مال پر موږ حرام دی. موږ پر خپل ځان د اسلامي خلافت احترام لازم ګڼو او د ترکانو ورونو سره جنګ نه کوو بلکې تل تر تله سوله ورسره غواړو.

ترکان چې د افغاني پاچا د ښه سلوک تر اغېزې لاندې راغلي وو، د ایران د نیونې ځخه یې لاس واخیست، او دیوسفیین په وراستولو سره یې د ایران هوتکي دولت په رسمیت وپېژندو.

شاه اشرف د ترکانو نه وروسته د ایران په خاوره کښې د روسانو یرغلګرو قواوو ته متوجه شو. په هغه جنګ کښې چې د سیدال خان ناصري سپه سالار او د ارلوف په نامه روسي جنرال ترمینځ وشو، روسي قواوو ته یې کلکه ماتې ورکړه او روسي جنرال سوله وغوښتله.

نو شاه اشرف د روسانو سره معاهده وکړه او د ایران نیول شوې سیمې

یې بېرته ترلاسه کړې .

د طهماسب سپه سالار نادرافشار د افغاني پاچا د مصروفیت

څخه استفاده کړې وه او د خراسان او سنی ولایت او سیستان یې نیولی

وه .

شاه اشرف چې یو شمېر خپلې افغانی قواوې په جنګونو کښې له لاسه

ورکړې وې او د قندهار څخه یې د مرستې امید هم نه وه ، د نادرافشار

سره یې د کار یوې خواته کولو لپاره پخپله د افغانستان لوېدیځې لورې ته

عسکر راوایستل او په مهماندوست کښې د نادرافشار د قواو سره مخامخ -

شو . نادرافشار چې په جنګ کښې د توپخانې اغېزمنتوب لیدلی وه ، نو په

خپلو قواوکښې یې داسې لویه او سمباله توپخانه ځای پرځای کړې وه چې

د فرانسې توپچي صاحب منصبانو لخوا اداره کېده ، افغانو قواوچې په تورو

سره پرې حمله وکړه ، د نادرافشار د قوي توپخانې په مقابل کښې یې

درانده تلفات وګالل او آشرف په قواوکښې چې کوم ایرانی عسکر و ،

نادر افشاته تسلیم شول. دغه راز د هغوی په دویم جنګ کښې هم دافغانو قواو څخه ځلریشت زره تنه تلف شول.

شاه آشرف چې د بلوچستان خواته په شاتللی و د هوتکي شاه حسین د سپرو لخوا د ټوپک په ډز شهید شو، او په دغه ډول د هوتکي دولت لخوا د ایران نیول کېدنه په (۱۷۲۹، م) کال پای ته ورسېده.

## شاه حسین هوتکي (۱۷۲۹ - ۱۷۳۸، م)

د قندهار سیمې د شاه حسین په لاس کښې وې او خپل نفوذ یې ترهرات او سیستان او ترکومل درې پورې نور هم پراخه کړ، خو ځکه چې د نادرافشار یره ورسره وه نو ده یې د قندهار په ښار کښې زیرمه کړه او د قندهار ښار یې د کلکې نظامي کلا په بڼه جوړه کړ.

نادرافشار د ارغنداب د سیند ترغاړې راغی او هلته دېره شو.

شاه حسین چې داحال ولید نو د نادر په اردو یې د شپې لخوا خونړي بریدونه

وکړل او دهغې قواوې يې خورې ورې کړې او پخپله قندهار ته راستون شو.

نادرافشار پخپله د خپل لښکر د مغلوبو کسانو د تښتېدو د مخنيوي لپاره کار شروع کړ او تښتېدلي کسان يې په زور وګرځول، او خپل لښکر يې په چټکۍ سره د ارغنداب له سيند څخه راواړوه او بيا له څنډې يې د قندهار په ښار د توپونو او ټوپکو ډزې پيل کړې. شاه حسين د قندهار د چهل زينې د غرد لوړو برخو افغاني توپخانې ته د دښمن په لورد اور بل امر وکړ.

نادر د افغاني لښکر لخوا د شپې د خونړيو بريدونو د مخنيوي لپاره يوه لويه نظامي کلا جوړه کړه، او په افغاني لښکر يې د اذوقې رسولو لار بنده کړه چې په دې ډول د قندهار د ښار حالت خطرناک شو.

قندهار يانو لس مياشتې د قوي دښمن په مقابل کښې په زړه ورتيا سره مقاومت او دفاع وکړه ترڅو چې آخر د چهل زينې غر چې د قندهار ښار يې ترشا او پناه کړې وه د دښمن په لاس ورغی، او د ښار د برالونه

چې وران شوي نادر د خپل لښکر سره د قندهار په ښکلي ښار ننوت.

او دا ښار د ویرو اوغمونو ویني په توئیدو سره د نادر په لاس ورغی.

په افغانستان کښې د نادرافشار دېر بدکار د قندهار د ښار ورانول او خرابول وُ، په داسې حال کښې چې شاه محمود او شاه اشرف د ایران په جنګونو کښې د ایران هیڅ کوم ښار او کلی نه وه وران کړي.

نادر د قندهار ترنیولو وروسته د افغانستان د ختیځو ولایتونو له لارې هندوستان ته لاړ او د ډیلي ترفتح کولو او د زیاتو ولجو، کوه نور الماس او تخت طاوس لاس ته راوړلو څخه وروسته بېرته ستون شو.

د نادر د پاچهي په پای کښې ورڅخه د خپل دولت ارکان ګرکه پیدا کړه او نادر یې په فتح آباد کښې ووژه.

احمد شاه ابدالی چې د نادر سره د افغاني قواو مشر وُ قندهار ته راغی او د قندهار د خلکو په عمومي جرګه کښې د افغانستان پاچا وټاکل

چې هندوستان او د ایران زیاته برخه یې فتح کړه.

## تمرین :

۱- هوتکی شاه اشرف په کوم کال د افغانستان پاچا شو، او څو کاله یې پاچهي وکړه ؟

۲- په ایران کښې د شاه اشرف کورنۍ او بهرنۍ غټې ستونزې کومې وې ؟

۳- صفوي شاه طهماسب د تاج او تخت د لاس ته راوړو لپاره د ایران کوم ولایتونه عثماني ترکیه او د روس تزاري پراختیا - غوښتونکي دولت ته ور پېښودل ؟

٤- شاه اشرف د ترکانو سره په جنګ کښې تر بریالیتوب وروسته د عثماني لښکر څخه پاتې جنګي وسایل او مواد ولې د غنیمت مال په توګه قبول نه کړل ؟

۵- د روس دولت ته په ایران کښې کوم افغاني سپه سالار - ماتې ورکړه ؟

٦ـ شاه طهماسب د چاله لاسه ماتې وخوړه ؟

٧ـ شاه اشرف د چالخوا اوولې ووژل شو ؟

٨ ـ هوتکی شاه حسین چې د شاه محمود او شاه اشرف په وخت کښې په قندهار کښې ؤ کومې سیمې یې د قندهار سره یوځای کړې وې ؟

٩ـ شاه حسین په کوم ځای کښې د نادر افشار په اردو د شپې لخوا خونړي بریدونه وکړل ؟

١٠ـ نادر افشار د قندهار د ښار د کوم مهم ځای ترنیولو وروسته د ښار داخل ته لیار پیدا کړه ؟

١١ـ په قندهار کښې د نادر افشار د پر بد کار څه ؤ ؟

١٢ـ نادر افشار چېرته او په څه ډول ووژل شواو په افغانستان کې څوک پاچا شو ؟

لاندې احد، احد ویل ترڅو چې آخر حضرت ابوبکر(رض) خپل مشرک غلام امیه ته ورکړ او دهغه په عوض کښې یې حضرت بلال(رض) آزاد کړ.

## حضرت محمد صلی الله علیه وسلم او د بني هاشمو جلاوطني:

کله چې د حضرت پیغمبر(ص) او ابوطالب سره د قریشو د کافرانو خبرې اترې او وړاندیزونه بې نتیجې پاتې شول پوخ نیت یې وکړ چې حضرت پیغمبر(ص) او مسلمانانو ته آزار او شکنجه ورکړي. کفارو نه یواځې د حضرت پیغمبر(ص) یارانو او بې کسو او بې وسو مسلمانانو ته شکنجه ورکوله، بلکې د حضرت پیغمبر(ص) د آزارولو او شکنجه کولو هڅه یې هم کوله.

یوه ورځ د کعبې سره نږدې یو شمېر کافرانو چې د خدای د رسول چېرن له د واړه خوا ونه ونیوله او غوښتل یې چې آنحضرت(ص) ته زیات ضرر ورسوي په دغه حال کښې چې حضرت ابوبکر(رض) حاضر و د ژړا په حال کښې یې وویل: آیا دی په دې جرم وژنئ چې وایي زما خدای یو دی؟

بیا نو کافرانو آنحضرت(ص) خوشې کړ او د حضرت ابوبکر(رض) په وهلو

او شکنجو یې لاس پورې کړ .

همدا راز یوه ورځ ابوجهل د صفا غر ته نژدې د خدای رسول ته سپکنځل وکړې چې د انحضرت (ص) مشهور تره حمزه بن عبدالمطلب ترې خبر شو ، حضرت د خپل وراره په مقابل کښې د ابوجهل له سپین سترګي توب نه په قهر شو او په ابوجهل پسې لاړ او په هغې لیندې سره یې د ابوجهل سر مات کړ چې په لاس کښې یې وه او خپل مسلمانېدل یې اعلان کړ .

په داسې حال کښې چې حضرت پیغمبر (ص) او مسلمانان د کفارو تر آزار او شکنجې لاندې وو ، حضرت عمر فاروق (رض) چې د حضرت پیغمبر (ص) او اسلام کلک دښمن وُ هم مسلمان شو ، د حضرت حمزه (رض) او حضرت عمر (رض) مسلمانېدلو مسلمانانو ته زیات قوت ورکړ ، له دې کبله مسلمانانو وروسته تر هغه د کعبې د خونې تر څنګ په ښکاره ډول لمونځ وکړ .

کله چې قریشو کافرو ولیدل چې د اسلام ورځ په ورځ زیاتېدونکي نفوذ مخه د مسلمانانو په آزار او شکنجه کېدو نشي نیول کېدای ، له دې کبله

یې تصمیم ونیوچې د بني هاشمو سره اړیکې پرې کړي او ورسره په هر

ډول راکړه ورکړه بندیز ولګوي، ځکه چې هغوی د حضرت پیغمبر ملاتړ

کاوه، نو د مقاطعې موضوع یې ولیکله او په کعبه کښې وځړوله. د اړیکو

د پرېکېدو وخت د بعثت د اووم کال نه تر لسم کال پورې (درې کاله) دوام

وموند، د اسلام پیغمبر او کورنۍ یې د اړیکو د پرېکېدو دوره د زیاتو

ستونزو په ګاللو سره د مکې په یوه دره کښې چې په شعب ابوطالب مشهوره

وه تېره کړه.

حضرت پیغمبر د اړیکو د پرېکېدو او حجلا وطنۍ په ورځو کښې د الهي

وحې په واسطه خبر شو چې ویانو د مقاطعې او اړیکو پرېکېدو لیکنه

پرته د خدای پاک له نامه ټوله خوړلې ده. دا موضوع آنحضرت

ابوطالب ته وویل؛ ابوطالب د خپلو ورونو سره د قریشو کافرو ته ورغی او

ورته یې وویل چې، وراره مې وایې ویانو د اړیکو د پرېکېدو ټولې لیکنې

خوړلې او یوازې د خدای پاک نوم ثابت او پرځای پاتې دی تاسو د

اړیکو د پرېکېدو د تړون پاڼه وګورئ که هم داسې وه نو له مقاطعې څخه

لاس واخلئ اوکه نه وه نوحضرت محمدؐ تاسي ته سپاره .

قریشو وویل سمه ده، بیایې د مقاطعې لیکلې پاڼه پرانیسته او د حضرت پیغمبرؐ وینایې رښتینې وموندله، قریشو بیاهم مقاطعې ته دوام ورکړ ترڅوچې د بني هاشم زیاتو کړاونو او زړه نرمونکي حالت دځینو پر زړه تاثیر وکړ اومقاطعه یې له مینځه یوړه او حضرت پیغمبرؐ دخپلې کورنۍ (بني هاشمو) سره د شعب ابوطالب نه آزاد شو .

## تمرین :

۱- قریشو په دارالندوه کښې حضرت محمدؐ ته څه پشنهادونه وکړل او آنحضرتؐ ورته څه ځواب ورکړ ؟

۲- ابوطالب حضرت پیغمبرؐ ته د قریشو د مشرانو دویناوو په هکله څه وویل او آنحضرتؐ په ځواب کښې ورته څه وویل ؟

۳- مشرکانو د یاسر د کورنۍ سره څنګه سلوک وکړ ؟

٤- حضرت بلال د چا له خوا شکنجه کېده او څنګه ازاد شو؟

۵ - حضرت پيغمبر؛ د بني هاشمو سره يوځاى د كفارو له خوا چرته او څنګه جلاوطن شو ؟

٦- بنى هاشم او د اسلام پيغمبر؛ د جلاوطنۍ نه په څه ډول وژغورل شول ؟

# حبشي ته د مسلمانانو هجرت :

کله چې د مکې مشرکانو ظلمونه او بې عدالتۍ د مسلمانانو سره د زغم او توان له اندازې څخه واوښتې حضرت محمد ﷺ مسلمانانو ته امر وکړ چې حبشي ته هجرت وکړي ځکه چې د هغه ځای پاچا په هیچا ظلم او ستم نه کوي.

لومړی ځل یوولس تنو مسلمانانو چې څلور تنه یې ښځې د مسلمانانو ښځې وې حبشي ته هجرت وکړ او بیا یو شمېر نور مسلمانان ورو ورو حبشي ته مهاجر شول چې شمېر یې ۸۳ نارینه او ۱۷ ښځو ته رسېده.

د حبشي پاچا نجاشي مسلمانانو ته پناه ورکړه او مسلمانانو هلته ارام ژوند درلوده. ترڅو چې د مسلمانانو ورځ په ورځ زیاتېدونکي هجرت ته د قریشو پام شو او وېرېدل چې هسې نه چې د حبشي پاچا مسلمانانو ته انساني او مالي مرسته ورکړي او مسلمانان په مکه باندې یرغل راوړي او نور مسلمانان هم د ځان سره حبشي ته بوځي، ځکه چې قریش نشي کولای د مسلمانانو

فعالیت هلته کنترول کړي او یا د اسلام د نفوذ مخه ونیسي . نو دعبدالله بن ابی ربیعه او عمرو بن العاص په نامه یې خپل دوه تنه استاذي نجاشي ته واستول او نجاشي یې په مسلمانانو بد ګمانه کړ . نجاشي چې هوښیار او نیک سړی و محکښې له دې چې تصمیم ونیسي مسلمانان یې را وغوښتل او د هغه نوی دین د حقایقو څرګندونه یې ترې وغوښته کوم چې انحضرت[ص] راوړی وه . حضرت جعفر(رض) بن ابی طالب د هغه څه په باره کښې چې حضرت پیغمبر(ص) راوړی وه لازمه څرګندونه وکړه چې د نجاشي قناعت پرې حاصل شو او اوښکې یې وبهېدې او بیایې وویل : « په خدای قسم دا خبرې او هغه خبرې چې حضرت عیسی(ع) راوړي دي له یوه ځایه سرچینه اخلي » .

او د قریشو استاذو ته یې وویل : ځئ په خدای قسم هغوی تاسو ته نه سپارم .

## مدینې منورې ته د حضرت پیغمبر(ص) هجرت:

د شعب ابو طالب څخه د حضرت پیغمبر(ص) او بني هاشمو د آزادېدو وروسته میاشتې نه وې تېرې شوې چې د حضرت پیغمبر تره ابوطالب وفات شو او بیا یوه میاشت وروسته د آنحضرت(ص) بي بي خدیجة الکبری(رض) هم وفات شوه. د غو دوه مړینو د خدای رسول دومره غمجن کړ چې مسلمانانو هغه کال د غم کال په نامه یادکړ او دا کال د بعثت لسم کال و. د ابوطالب تر مړینې وروسته د خدای د رسول(ص) په مقابل کښې د مشرکانو ضرر رسول زیاتوالی ومومند. کله چې حضرت پیغمبر(ص) ولیدل چې حالت خراب دی نو یوه ورځ پرته له دې چې بل څوک خبرکړي د زید بن حارث په ملګرتیا طائف ته روان شو په طائف کښې یې د بني ثقیف قبیله اسلام ته راوبلله او مرسته یې ترې وغوښتله، خوهغوی نه یوازې داچې د حضرت پیغمبر(ص) بلنه یې ونه منله بلکې آزاریې ورته ورسوه او په کاڼویې وویشته ترڅو یې پښې د بدن په وینو ډکې شوې. بالاخره د طائف څخه راووت او مکې ته راستون شو.

حضرت پیغمبر له دې پېښې نه وروسته درې کاله نور هم په مکه کښې واوسېده.

په یثرب (مدینه منوره) کښې د اوس او خزرج په نامه دوه مشهور قبیلو ژوند کاوه او دواړو قبیلو یو تر بله د ښمني درلوده او په کلونو کلونو په جنګ او کشمکش بوختې وې. د بعثت د یوولسم کال د حج په ورځو کښې چې کله حضرت پیغمبر مختلفې قبیلې اسلام ته رابللې د خزرج د قبیلې شپږو تنو چې مکې ته راغلي وو اسلام قبول کړ، او حضرت پیغمبر ته یې قول ورکړ چې کله یثرب ته لاړشي نو خپل قوم به اسلام ته رادعوت کړي. دغه راز د بعثت په دولسم او دیارلسم کال هم د اوس او خزرج د قبیلو یو شمېر کسان د حج په ورځو کښې مسلمانان شول او د حضرت پیغمبر سره یې تعهد او ژمنه وکړه چې په سر او مال به د آنحضرت او اسلام څخه دفاع کوي. . د اسلام پیغمبر وروسته تر هغې مسلمانانو ته امر وکړه چې یثرب ته هجرت وکړي او ډلې ډلې یثرب ته مهاجر شول. کله چې د قریشو مشرکینو د آنحضرت د وژلو نقشه جوړه کړه نو حضرت پیغمبر ته د

خدای پاك لخوا امر وشوچې دې هم هجرت وکړي . حضرت پیغمبر(ص)
حضرت علی(رض) ته وویل چې د شپې د هغه په بستره کښې وېده شي او -
حضرت علی(رض) هم هماغسې وکړل .

د خدای رسول د مشرکانو د کلک تعقیب او پلټنې سره سره د حضرت
ابوبکر(رض) په ملګرتیا له کوره راووت او د واړو غار ثور ته پناه یوړه . په غار
ثور کښې یې درې ورځې تېرې کړې او بیا د یثرب په لور روان شوچې د
بعثت د دیارلسم کال د لومړي خور په "۱۲" نېټه د دوشنبې په ورځ یثرب ته -
ورسېده .

بسم الله الرحمن الرحیم

# لومړی فصل

## تاریخ

تاریخ د انسان پېژندنه او ورباندې تېرې شوې پېښې د وخت او ځای سره څېړي ، د بشر په تېر شوي تاریخ کښې د داسې خلکو د ژوندانه سره روږدي کېږو چې په بېلا بېلو دورو کښې یې ډول ډول عقاید ، دودونه او عادات درلودل او په دې نړۍ کښې یې ژوند کړی دی .

تاریخ د تېرو شوو قومونو ، اولسونو او حکومتونو څخه بحث کوي ، د خلکو ښه او بد کارونه چې په تاریخ کښې لیکل شوي پاتې دي د نړۍ اوسنیو او راتلونکو خلکو ته د پند او عبرت درس ورکوي .

### په تاریخ کښې مقایسه :

په تاریخ کښې د پېغمبرانو علیهم السلام د ژوند د پاچایانو سره د نمونې په ډول مقایسه کولای شو .

پېغمبرانو علیهم السلام په عمومي ډول خلک د خدای اطاعت ، ورور ګلوۍ محبت او دوستۍ ته رابلل خو پاچایانو زیاتره خلک د خپل امرمنلو او خپلو حکومتونو اطاعت کولو ته مجبورول ترڅو ورباندې د خپل خوښې حکومت

# تمرین :

۱- د اسلام پیغمبر(ص) ولې مسلمانانو ته امر وکړ چې حبشې ته هجرت وکړي ؟

۲- د قریشو مشرکانو حبشې ته د مسلمانانو د هجرت په مقابل کښې څه ډول عکس العمل وښوده ؟

۳- د مسلمانانو سره د حبشې د پاچا سلوک څنګه و ؟

٤- د غم کال کوم کال و او هغه کال ته ولې د غم کال وایي ؟

۵ - د طائف خلکو د حضرت پیغمبر(ص) د دعوت په مقابل کښې څه عکس العمل وښود ؟

٦- یثرب ته د پیغمبر(ص) او مسلمانانو د هجرت زمینه څنګه برابره شوه؟

# دوهم فصل

## د هجرت د لومړي کال مهمې پېښې :

د اسلام پیغمبر ص یثرب ته د رسید و سره سم د بنی مالک بن نجار په ځای کښې چې اوښ یې هلته کښیناست ووهله د جومات جوړولو امر وکړ ، او پخپله د جومات د کار تر بشپړېدو پورې د ابو ایوب انصاري په کور کښې اوسېده . وروسته تر هغې د یثرب نوم په مدینة النبی یا مدینه منوره بدل شو.

حضرت محمّد ص په لومړي سر کښې د مسلمانانو معنوي یووالي ته توجه وکړه . د انصارو او مهاجرینو ترمینځ یې د دوستۍ او ورور ګلوۍ تړون رامینځته کړ او امر یې وکړ چې هر دوه تنه دې یو تر بله سره ورونه شي. په دې تړون سره د بېلا بېلو قبیلو د مسلمانانو پیوستون او یووالی پیدا شو یهودیان د حقوقو په لحاظ د مسلمانانو په شان وګڼل شول . د هغوی آزادي ، دین او مال محترم وشمېرل شو . او د مدینې د خاورې د دفاع

د هغې ټولو اوسېدونکوته - که هغه د مسلمانانو له قبیلې څخه وُ او که د یهودیانو له طایفو څخه - ورپه غاړه شوه.

د هجرت په لومړي کال نبوی مسجد بشپړ شو، لمونځ او زکات فرض شو، او د لمونځ د اداکولو لپاره اذان شروع شو. پیغمبر د مسلمانانو سره په جومات کښې لمونځ کاوه. د دین اساسات یې هغوی ته ورزده کول د مسلمانانو ترمینځ یې په زیاترو مسئلو کښې قضاوت کاوه، او په ټولو موضوعاتو کښې یې د مسلمانانو سره مشوره کوله د عربو د قبیلو استاذي به چې مدینې ته راتلل په جومات کښې به یې د هغوی پذیرایي کوله. په دې کال د وسله وال جهاد په حقله د قرآن کریم آیتونه نازل شو، او د خدای رسول د وسله وال جهاد لپاره د کمزو قطعات او ټولي جوړ کړل چې د سَرِیَّه په نامه یادېدل (په هغو ټولیو او سفرونو کښې چې پخپله پیغمبر حاضر وُ غزوه ورته وایي او که پیغمبر به پکښې نهٔ وُ سریه ورته ویل کېږي).

د هجرت د لومړي کال په وروستیو میاشتو کښې د مهاجرینو څخه ټولي جوړې شو ترڅو چې په قریشو باندې د هغوی د سوداګرۍ په لارکې

چې د مدینې څخه تېرېده او د شام په لوري تللې وه فشار او زور راوړي
نو لومړی ټولی چې دېرش تنه ؤ د حضرت حمزه بن عبدالمطلب په مشرۍ
دوهم ټولی چې شپېته تنه ؤ د عبیده بن حارث په مشرۍ او دریم
ټولی چې اته تنه ؤ د سعد بن ابی وقاص په مشرۍ د هغوی د تجارتي
کاروانونو تګ راتګ لارې ته واستول شو. دا ټولې د مانور د سرته رسولو
نه وروسته پرته له دې چې د قریشو تجارتي مالونه ترلاسه کړي، بېرته
راستانه شول.

د هجرت د لومړي کال په دولسمه میاشت پخپله پېغمبر (ص) هم د سلوتنو
مهاجرینو سره د یوځي ټولیو جوړولو لپاره له مدینې څخه راووت او
د ودان تر سیمې پورې مخ په وړاندې لاړ او هلته یې د بنو ضمره د قبیلې
سره د دوستۍ تړون وکړ. د پېغمبر (ص) دا سفر د ودان غزوې په نامه
یادېږي.

د یوځي ټولیو (سریو) جوړولو او استولو هدفونه په لاندې ډول وو:

۱- د یوې منظمې اسلامي اردو مېنځته راوړل.

۲- مسلمانانو ته جنګي او پوځي روحیه ورکول او د اسلام څخه دفاع او د اسلامي دعوت پراخول .

۳- د مکې د کافرانو دیرغل په مقابل کښې د مسلمانانو چمتوکول او د اسلام د دښمنانو په تیره بیا د مدینې منورې د یهودیانو د احتمالي تعرض سره مقابله کول .

٤- د مدینې د یهودو او منافقانو د ډلو ټولو تهدیدول تر څو د اسلام او مسلمانانو پرخلاف د سیسو څخه لاس واخلي .

٥ - مسلمانانو ته د آزادۍ ورکول او پرته له ممانعت نه مکې ته د دوی د تګ راتګ لپاره د قریشو د کافرانو د تجارتي مالونو په خطرکښې غورځولو له لارې تهدیدول

# دهجرت دویم او دریم کال

## دبدر او احد غزاګانې :

د هجرت په دویم کال هم د قریشو د تجارتي کاروانونو د تګ راتګ لیاره ته د پوځي ټولیو استولو دوام ومونه . د هجرت د دویم کال په لومړیو میاشتو کښې پخپله حضرت پیغمبر د مهاجرینو د ټولګیو سره یوځای د قریشو د تجارتي کاروانونو د تګ راتګ د لیارې د څه ودرولو لپاره له مدینې څخه راووت . د پیغمبر دا سفرونه د بدر ترجنګ پورې د بواط عشیره او لومړۍ بدر غزاګانو په نامه یادیږي .

د لومړي بدر څخه وروسته د عبدالله بن جحش په مشرۍ اته کسیزه ټولی د قریشو د کاروان لارې ته ولیږل شو . دا ټولی د طائف او مکې ترمنځ نخله نومي ځای کښې د قریشو د کاروان سره مخامخ - شو . کله چې د دواړو خواو ترمنځ جنګ ونښت نو د قریشو د کاروان مشر عمرو حضرمي ووژل شو او نور دوه تنه یې بندیان او ټول تجارتي

مالونه یې د مسلمانانو په لاس کښې ولوېدل. په همدغو حالاتو کښې د هجرت د دویم کال د شعبان (بزرګې) په میاشت کښې د قرېشو یوه لویه قافله چې زیاته پانګه ورسره وه د شام څخه یو داسې ځای ته - راورسېده چې د مسلمانانو ترکنترول لاندې وه، او د قرېشو د کاروان ساتونکي هم د ډېرش، څلوېښتو تنو څخه زیات نه وو نو داوېره پرې راغله چې هسې نه چې مسلمانان یې پرکاروان حمله وکړي. له دې کبله ابوسفیان چې د قافلې مشرؤ، یو تن په چټکۍ سره مکې ته واستوه څوله هغه ځایه مرسته واخلي. دغه سړي په مکه کښې ناري کړې چې مسلمانانو قافله تالاکړه، دده په دغو چغو او نارو د قرېشو مشرانو د خپلو ځوانانو څخه «۱۰۰۰» کسیز لښکر جوړکړ، او د قافلې د ژغورلو او مسلمانانو سره یې د جنګ کولو لپاره د مدینې منورې په لورې ولېږه.

کله چې پیغمبر (ص) د قرېشو د قواو له حرکت څخه خبر شو او د مسلمانانو سره یې مشوره وکړه چې څنګه تصمیم ونیسي.

آیا د قرېشو لښکر سره وجنګېږي او که بېرته مدینې ته ستون شي؟

پیغمبرﷺ ته د فکرونو موضوع د انصارو موضوع وه .

په تېرو شوو سفرونو او د سریو (ټولیو) په جوړېدو او استول کېدو کښې انصارو ګډون نه درلود . مګر په دې ځای کښې په «۳۱۳» تنو مسلمانانو کښې «۲۳۶» تنه وو . انصار د عقبهٔ کبراء د تعهد او خپل بیعت له مخې د مدینې په ښار د پیغمبرﷺ څخه په دفاع کولو مکلف وو ، نه داچې له مدینې څخه راووځي او د قریشو سره دې وجنګېږي ، حضرت عمر فاروق ، ابوبکر صدیق او بیا مقداد د مهاجرینو په نمایندګۍ د خدای د رسول دامر منلو ټینګار ونه وکړ او نورو مهاجرینو یې هم تائید وکړ .

بیا پیغمبرﷺ انصارو ته وویل : «چې تاسو خپل نظر ښکاره کړئ» !

سعد بن معاذ چې د انصارو بېرغچي و ، پیغمبرﷺ ته یې وویل :

«مونږ پر تا ایمان راوړی ، ستا تصدیق مو کړی او شاهدي مو ورکړې چې ستا دین حق دی . تعهد مو کړی چې ستا پېرا و امر منونکي یو او س مونږ ستا اراده تائید و او هر ځای ته چې ځې مونږ درپسې یو ، د دښمن

سره د مقابلې کولو نه وېره نلرو او په جنګ کښې د صبر خاوندان یو ».

دخدای رسول ﷺ د سعد ؓ په خبرو خوشحاله شو او د جنګ د مېدان په لورې یې د لښکر د حرکت کولو امر وکړ.

د هجرت د دویم کال د روژې د میاشتې اولسمه (۱۷) نېټه او د جمعې د ورځې سهار وُچې د بدر په وادی کښې جنګ پېل شو.

د هماغې ورځې په پای کښې د کافرانو په ماتې او د مسلمانانو په بریالیتوب سره جنګ پای ته ورسېد. د مشرکانو څخه (۷۰) تنه ووژل شول، چې زیات شمېر یې د قریشو د سردارانو څخه وژل شوي وو. نور (۷۰) تنه یې د مسلمانانو په بند کښې پرېوتل او پاتې یې وتښتېدل د مسلمانانو څخه (۱٤) تنه شهیدان شول چې شپږ (٦) تنه مهاجرین او اته (۸) تنه یې انصار وو.

د بدر له ماتې نه وروسته د قریشو کافرانو تل د بدل اخیستلو فکر درلود، ترڅو چې ابو سفیان د بدر د جنګ نه وروسته په بل کال کښې درې زره کسیز لښکر تیار کړ او پر مدینه باندې د حملې کولو لپاره روان.

شو. د اسلام پیغمبر ص چې د دښمن له حرکت څخه خبر شو، د -
مسلمانانو سره یې سلا وکړه چې د دښمن سره په مقابلې کولو کښې څنګه
پلان جوړ کړي. آنحضرت ص د مسلمانو ځوانانو په نظریه او ټینګار کولو
د نهو سوو (۹۰۰) یا زرو (۱۰۰۰) تنو سره له مدینې څخه راووت او د
احد غرته روان شو، په لیارکښې د منافقانو مشر چې عبدالله بن ابی
نومیده د درې سوه (۳۰۰) تنو سره راستون شو او پیغمبر ص د نورو -
اوو سوو (۷۰۰) تنو سره احد ته لاړ او هلته یې مورچل ونیو.
د قریشو لښکر هم احد ته راورسید او د هجرت د دریم کال د شوال
(کمکی اختر) د میاشتې په نهمه نیټه د دواړو خواو ترمنځ جنګ
پیل شو. حضرت محمّد ص د جنګ د شروع کیدو نه د مخه یو شمیر
غشو ویشتونکو ته د عبدالله بن جبیر تر قوماندانۍ لاندې د غر
د پاسه وظیفه ورکړه چې د جنګ تر پایه پورې هلته ځاى ونیسي او په
هیڅ ډول خپل مورچل خوشې نه کړي.
د جنګ په لومړیو شیبو کښې د ښمن په تښتید وشو، خود مسلمانانو

وکړای شي ، پاچاپانو په دنګو ماڼیو کښې دخپلو وزیرانو او لوړ رتبه مامورینو سره ژوند کاوه او پیغمبران دخلکو په مینځ کښې اوسیدل او دخلکو غمخور وو ، دتاریخ څیړل راښیي چې دخدای پیغمبرانو ته بریالیتوب ، ماڼي ، حکومت درلودل او نه درلودل یوشان ؤ ، او کوم څه چې ورته غوره ښکاریدل دهغو دندو سرته رسول ؤ دکومو لپاره چې دخدای تعالی له خوا ورته امر شوی ؤ .

## پیغمبران علیهم السلام :

پیغمبران داسې کسان وو چې وحې ورته نازلیدله او انسانان یې ددنیا او آخرت خیر ښیګڼې او نیکمرغۍ ته رابلل .

پیغمبرانو ته ځکه پیغمبران ویل کیږي چې دانسانانو دژغورنې او بریالیتوب لپاره یې دپروردګار له خوا دامر او نهې ، حلال او حرام احکام راوړي دي ، پیغمبران ددې لپاره راغلي دي چې خلکو ته نیکه لار وښیي . دقرآن کریم په تعبیر هغوی دخدای لوري ته دانسانانو دبشپړتیا د لارې بلې ډیوې دي ، دهغوی بلنه یوازې یوخدای او دیوخدای عبادت کول او دبُت پرستۍ او پرته له خدای نه بل چا ته له سر ټیټولو نه دانسانانو منع کول ته ده . دوی دظلم او ناپوهۍ ، شرک او عبثو کارونو او فساد سره مبارزه او جګړه وکړه ، پیغمبرانو دخپلو نیکو کارونو په بدل کښې کومه اجوره نه غوښتله ، پیغمبران دګناه او خطا څخه پاک او سپیڅلي وو .

د لښکر غشو ویشتونکو چې پاس په غره مورچل نیولی وُ، خپل مورچل د مسلمانانو د بریالیتوب په فکر خوشې کړ او د دښمن سپرو له همدغه ځای نه د مسلمانانو قوا و په منځ حمله وکړه او مسلمانانو ته یې دراند تلفات ورسول. په دې جنګ کښې اویا (۷۰) تنه مسلمانان شهیدان شو.

د پیغمبر غابښ پکښې هم شهید او مخ یې زخمي شو، په شهیدانو کښې د مصعب بن عمیر، حمزه بن عبدالمطلب، عبدالله بن جحش سعید بن ربیع او نورو په شان پوشمېر مشران اصحابان شامل وو، په داسې حال کښې چې د دښمن تلفات (۲۲) تنو ته رسېدل.

# د هجرت څلورم او پنځم کال

## د احزاب غزا او د بنی قریظه خیانت

د احد د جنګ نه وروسته هغو قبایلوچې د قریشو سره یې تړون درلود، فکر کاوه چې مسلمانان کمزوري شوي دي، نو په مدینه باندې د حملې کولو په هڅه کښې شول. د بنی اسد او بنی هذیل قبیلوچې پر مدینه د یرغل او جنګ کولو تدبیر نیوه، په همدغه وخت کښې مسلمانانو ورباندې ناڅاپي حمله وکړه او ویې ځپل.

په بنی لحیان پورې د مربوطې قبیلې یوه ډله کسان پیغمبر ته راغلل او په دې نوم چې مسلمانان شوي دي، د پیغمبر ؐ شپږ تنه اصحاب یې ځانته د دیني تعلیماتو د زده کړې او لارښوونې لپاره له ځان سره بوتلل، خو شپږ واړه یې د رجیع په اوبوکښې د هذیل د قبیلې په خلکو شهیدان کړل.

د پیغمبر ؐ څلویښت تنه نور اصحابان چې د بنی عامر د قبیلې د مشر ابو براء سره یو ځای خپلې قبیلې ته لاړل، هغوی هم د معونه څاپه-

سیمه کښې په همدغه شان پښه کښې شهیدان شول .

د مدینې یهودیانو هم د مسلمانانو په خلاف فتنې اچول او دسیسې جوړول زیات کړل . که څه هم د بني النظیر یهودیانو د مسلمانانو سره تړون کړی و ، خو کله چې پیغمبر د هغوی قبیلې ته ورغلی و، هغوی د آنحضرت د وژلو پلان جوړ کړ ، مګر پیغمبر یې له پلان څخه خبر شو او مدینې ته راستون شو .

پیغمبر له بني النظیر څخه وغوښتل چې له مدینې څخه لاړ شي ، خو بني النظیر ونه منله ، او د مسلمانانو له خوا تر هغه پورې کلابند وو ، تر څو یې چې خپل مالونه پرېښودل او له مدینې څخه ووتل .

تردې وروسته د اسلام پیغمبر د عربو نورې هغه قبیلې وټکولې چې پر مدینه یې د حملې کولو نیت درلود .

بیا د بني النظیر یهودیان د پیغمبر او مسلمانانو څخه د غچ اخیستلو په فکر کښې شول ، یو شمېر مشران یې په همدې مقصد د قریشو کافرو ته ورغلل او هغوی یې وهڅول چې پر مدینه یرغل وروړي .

د قریشو کافرانو خپل تیاری وښووه او د هجرت د پنځم کال د شوال (لمکی اختر) په میاشت کښې د قریشو د کافرانو، یهودیانو او نورو مخالفو قبیلو ځنې پر مدینه باندې د حملې کولو لپاره لس زره (۱۰۰۰۰) کسیز لښکر تیار شو پیغمبر چې د دښمن له یرغل ځنې خبر شو نو د سلمان فارسي په سلا یې تر مدینې چاپېره د خندق ایستلو او کنلو حکم وکړ.

خندق په شپږو ورځو کښې وایستل شو چې تقریباً (۶۰۰۰) متره اوږد او (۵) متره ژور وه او پلنوالی یې په داسې اندازه کښې و، چې په آس سپور ترې نشو تېرېدای.

کله چې دښمن د خندق هغې خواته ورسېد هلته یې مورچل ونیو او په غشو ویشتل یې پیل کړل، چې په نتیجه کښې یې (۶) تنه مسلمانان شهیدان کړل. د مشرکانو (۳) تنه د مسلمانانو په غشو او د خندق د ننه لاس په لاس جنګ کښې ووژل شو.

د بني قریظه یهودیانو چې د مسلمانانو سره تړون درلود، او د ښار داخل ته د دښمن د ننوتو لار یوازې د هغوی له لیارې وه، د مسلمانانو سره یې خیانت

وکړاو د مسلمانانو د دښمن سره ملګرتیا کولو ته تیار شول . ځکه په دغه پړاو کښې د مسلمانانو د ماتې احتمال کېده .
په پای کښې د دښمن عسکر په خپل مینځ کښې یو پر بل بدګمانه او سره مخالف شو، او د هوا د سوړوالي او سخت طوفان له امله او د توښې د خلاصېدو له وېرې خواره واره شو او خپلو کورونو ته ستانه شول . د اسلام پیغمبر په هماغې ورځ چې د دښمن قواوې له خندق څخه خورې شوې مسلمانانو ته لارښوونه وکړه چې د بني قریظه قبیله کلابنده کړي دا کلابندي (۲۵) ورځې اوږده شوه، او د بنی قریظه یهودیانو د پیغمبر فیصلې ته غاړه کېښوده . رسول اکرم د هغوی سره په فیصلې کښې سعد بن معاذ قاضي کړ . سعد بن معاذ د بنی قریظه د خیانت په وړاندې امر وکړ چې سړي دې ووژل شي، مالونه دې یې تالا او ښځې دې یې بندیانې شي . بني قریظه ته په همدې ډول د خپل خیانت سزا ورکوله شوه .

## تمرین

۱- په مدینه کښې د توليوجوړولوځنه د حضرت پيغمبر هدف څه وؤ؟

۲- کوم عامل د بدر د غزا سبب شو ؟

۳- مسلمانانو ولې د احد په غزا کښې ماتې وخوړه ؟

٤- انصارو د بدر په جنګ کښې خپل دريځ څرنګه اود چا په واسطه څرګند کړ ؟

۵- د احد د جنګ نه ووروسته مسلمانانو ته څه پيښې شول ؟

٦- د مسلمانانو په خلاف د احزاب د جنګ پاره نکې څوک ؤ، او مسلمانانو څه پلان غوره کړ ؟

۷- د بنی قريظه يهوديان په څه ډول سرنوشت اخته شول او دليل يې څه وه ؟

# د هجرت شپږم او اووم کال

## د حدیبیه سوله او د نړۍ مشرانو ته د لیکونو استول :

د اسلام پیغمبر د هجرت په شپږم کال د بني لحیان د ځپلو لپاره چې خوتنه یې په جیع کښې شهیدان کړي و ، د بوشمېر مسلمانانو سره حرکت وکړ . د بني لحیان خلک چې د پیغمبر له حرکت څخه خبر شو د خپل ځای نه وتښتېدل .

د بني مصطلق د قبیلې خلکو هم غوښتل چې پر مدینه حمله وکړي خو د هر څه نه مخکې د مسلمانانو لښکر د رسول الله په مشرتابه وړاندې ناڅاپي حمله وکړه او ویې ځپل . دا غزا د بني مصطلق د غزا په نامه یادېږي .

د هجرت د اووم کال د ذالقعدې (میاشې) په میاشت کښې رسول اکرم د (۱٤۰۰) مسلمانانو سره د عمرې کولو لپاره د مکې په لور حرکت وکړ .

ټولو مسلمانانو احرامونه وتړل، او له یوې تورې څخه پې زیات نور څه د ځان سره وانخیستل، ځکه چې پیغمبر په دې سفرکښې د جنګ نیت نه درلود.

کافران چې د حضرت محمد له حرکت څخه خبر شو، هڅه یې کوله چې پیغمبر مکې ته له ننوتو څخه منع کړي. پیغمبر په کږو وږو لارو څخه په کښې اخیستو سره حدیبې ته ورسید او هلته تم شو.

د قریشو کافران حدیبې ته د پیغمبر او مسلمانانو له ناڅاپي رسیدو څخه وېرېدل، ځکه چې په بېړه یې د پیغمبر سره په مذاکره لاس پورې کړ څو پیغمبر او مسلمانان مکې ته له ننوتو څخه منع کړي.

څو استاذي د مذاکرې لپاره له دواړو خواونه لاړل او راغلل تر څو چې د قریشو وروستني استاذي سهیل بن عمر د خدای د رسول سره یو تړون وکړ چې د حدیبې د سولې په نامه مشهور دی.

د حدیبې د سولې شرایط په څرګند ډول د مسلمانانو خوښ نه وو او ځینې مسلمانان یې خواشيني کړل خو وروسته ترې د خدای د رسول

هغه بنه تدبير او ځيرکتيا چې په دې سوله کښې ترې کار اخيستل شوی وُ ثابته شوه .

د سولې په تړون کښې ومنل شوه چې ترلسو (۱۰) کلونو پورې دې د دواړو خواو تر مينځ سوله وي ، نورې قبيلې دې له دواړو خواو څخه د هرې يوې سره د تړون په لاسليک کولو کښې ازادې وي . مسلمانان دې سږ کال مکې ته داخل نشي او په راتلونکي کال کښې کولای شي چې يوازې توره د ځان سره ولري او مکې زيارت ته راشي ، او له درې ورځو څخه زيات هلته تم نشي ، هر مشرک چې مسلمان بيي او مسلمانانو ته پناه وړي قريشو ته دې وسپارل شي ، خو که کوم مسلمان مشرکينو ته پناه يوسي نو بيرته مسلمانانو ته نه ورکول کيږي .

د تړون دا برخه چې مسلمانانو ته له هر څه نه ګرانه وه ، څه موده وروسته پخپله د قريشو لخوا له مينځه لاړه .

هغه مشرکان چې مسلمانان کيدل مدينې ته به نه تلل بلکې د شام په لوري د قريشو د تجارتي کاروان په لارې د عيص په نامه سيمه کښې -

مرکز ونیواو د هغوی تجارتي مالونه یې تالاکول ، ترڅوچې قریشو په خپله غوښتنه د تړون دا برخه له مینځه یوړه او پیغمبر د مسلمانانو دا ډله مدینې ته راوغوښتله .

پیغمبر د حدیبې څخه تر راستنیدو وروسته د نړۍ د هیوادونو ځینو پاچیانو ته لیکونه واستول او هغوی یې اسلام ته راوبلل. دایران پاچا کسرۍ لیک څیرې کړ . د حبشې پاچا نجاشي ښه ځواب ورکړ او په ځینو روایتونو هغه اسلام قبول کړ . د مصرپاچا مقوقس که څه هم مسلمان نه شو خو د لیك درناوی یې وکړ. د بحرین امیر مسلمان شو او د یمن او عمان امیر لیک ته ناوړه ځواب ورکړ .

حضرت پیغمبر د هجرت د اوم کال د محرم الحرام (امامانو) په میاشت کښې د (۱٦۰۰) تنو مسلمانانو سره د مدینې په شمال کښې د خیبر د - یهودیانو جنګ ته لاړ . د اسلام لښکر په خیبر ناڅاپي حمله وکړه او هغه یې کلابند کړ او کلکې کلاګانې یې یوه په بلې پسې فتح شوې ترڅوچې یهودیانو غاړه کښښوده چې د خپلو کروندو نیمائي حاصلات به

# په تاریخ کښې د پیغمبرانو «علیهم السلام» نقش :

پیغمبرانو د نړۍ د خلکو په لارښوونه او د انسانانو په بدني او روحاني پالنه او د هغوی د عقیدو په صحیح کولو کښې ډېر ستر او اغېزمن رول لوبولی دی . هغوی مونږ ته لارښوونه کړې ده چې د سمې لارې روغه رښتینې اداره او د شخصیت روزنه یواځې په یو خدای او د قیامت په ورځ په عقیدې لرلو او د خلکو ترمینځ په عدالت کولو او د خدای د حقوقو په پام کښې لرلو پورې اړه لري .

رښتینی تمدن هماغه تمدن دی چې یواځې الهي پیغمبران یې بنسټ اېښودونکي دي او نورو یې ورته زده کړه او یا پیروي کړې ده .

په قرآن کریم کښې د پنځه ویشتو پیغمبرانو د نومونو یادونه شوې ده چې عبارت دي له : آدم «ع» ، ادریس «ع» ، نوح «ع» ، هود «ع» ، صالح «ع» ، ابراهیم «ع» ، لوط «ع» ، اسمٰعیل «ع» ، اسحق «ع» ، یعقوب «ع» ، یوسف «ع» ، شعیب «ع» ، ذوالکفل «ع» ، موسیٰ «ع» ، هارون «ع» ، داوٗد «ع» ، سلیمان «ع» ، الیاس «ع» ، یونس «ع» ، ذکریا «ع» ، یحییٰ «ع» ، عیسیٰ «ع» او محمد صلی الله علیه وسلم څخه .

په قرآنکریم کښې د پیغمبرانو د نومونو او د هغوی د قومونو یادول یواځې خوشې تشې قصې نه دي بلکې د بد کارو او ظالمو خلکو د عاقبت څخه د پند او عبرت اخېستلو او د پیغمبرانو او نورو صالحو مؤمنانو څخه د صبر او استقامت د زده کولو لپاره دي .

مسلمانانو ته ورکوي . او برسېره پر دې يې دا تړون لاسليک کړ چې
که مسلمانان هر وخت وغواړي يهوديان له مدينې څخه ايستلای شي
د فدک او تيما يهوديانو پر ته له جنګ نه دا فيصله ومنله، او د وادی۔
القری يهوديان د جنګ نه وروسته مغلوب شول .

# د هجرت اتم او نهم کال

## د مکې معظمې فتح او د تبوک غزا :

پیغمبر؏ د حدیبې له تړون څخه وروسته په یو کال کښې زیات بریالیتوبونه ترلاسه کړل . د هیوادونو مشرانو ته د لیکونو په استولو کېدو سره د اسلام بلنه ورسوله شوه .

د مسلمانانو د خطرناکو دښمنانو یعنې یهودیانو د نفوذ مونږ وایستل شو . او هغه قبیلې چې پر مدینه یې د حملې نیت درلود او یا یې پخوا د مسلمانانو سره خیانت کړی و ، وټکول شوې .

د اسلام پیغمبر؏ د حدیبې د دې تړون سره سم چې په راتلونکي کال کښې مسلمانان مکې ته ننوتلای شي ، د هجرت په اتم کال د خدای ج د کور زیارت ته لاړ او په مکه معظمه کښې له درې ورځو تېرولو نه وروسته بېرته مدینې ته راستون شو . مدینې ته د پیغمبر؏ تر راستنېدو وروسته خالد بن ولید او یو شمېر نور خلک هم مسلمانان شو .

حضرت محمدﷺ خو میاشتې په مدینه کښې پاتې شو او د زید بن حارثه تر مشرۍ لاندې يې درې زره کسيز لښکر شام ته واستوه. د زید څخه يې وروسته جعفر بن ابوطالب او بيا عبدالله بن رواحه د اسلام د لښکر قوماندان وټاکه، چې خالد بن ولید هم د دغه لښکر سره يو ځای خوځنده ملګری شو.

د اسلام لښکر د بلقا د سرحد د موته په قريه کښې مورچل ونيو، او روميانو سل زره کسيز لښکر د هغوی سره د جنګېدو لپاره تيار کړ. جنګ چې ونښت نود مسلمانانو درې واړه قوماندانان يو په بل پسې شهيدان شول.

د اسلام لښکر د خپلو قوماندانانو تر شهيدېدو وروسته خالد بن وليد خپل قوماندان وټاکه، او خالدؓ په خپل خاص مهارت او لياقت سره د مسلمانانو لښکر چې ماتې يې اروموم لېدل کېدله د جنګ له ډګر څخه وژغوره او مدينې ته راستون شو. د اسلام د ښمنانو له موته څخه د مسلمانانو د لښکر تر ستنېدو وروسته د مسلمانانو د ماتې د موضوع

ګونکسي ګول او ځینو قبیلو فکر کاوه چې مسلمانان کمزوري شوي دي نو ځکه پر مدینه باندې د حملې کولو په فکر کښې شول ، خود مسلمانانو لخوا و نه کېدل . په دې وخت کښې د بنی بکر طائفې چې د قریشو سره یې تړون درلود د بنی خزاعه پر قبیله چې د مسلمانانو ملاتړ وه حمله وکړه . قریشو د حدیبې د تړون پر خلاف د بنی بکر د قبیلې سره همکاري او مرسته وکړه او په عملی ډول یې تړون تر پښو لاندې کړ .

په دې وخت کښې بنی خزاعه هم د اسلام له پیغمبر^ع^ څخه مرسته وغوښته او د مکې د فتح کېدو لپاره زمینه برابره شوه .

حضرت رسول اکرم^ص^ د هجرت په اتم کال د لسزره (۱۰،۰۰۰) کسیز لښکر سره د مکې په لور روان شو . د اسلام لښکر په داسې حال کښې مکې ته نژدې ورسېد چې قریش ترې خبر نه و . د قریشو مشر چې ابو سفیان نومېده د عباس بن عبدالمطلب په واسطه پیغمبر^ع^ ته راغی او اسلام یې راوړ . آنحضرت^ع^ د عباس په واسطه دا اعلان وکړ چې که هر څوک د ابو سفیان کور ته ننوځي نو هغه په امن کښې دی . همدغه شان یې وفرمایل چې که-

هرڅوک دخپل کور ور بند کړي او یا مسجد الحرام ته پناه یوسي هغه په امن کښې دی .

رسول کریم ﷺ خپل لښکر په څلورو ډلو وویشه او حکم یې وکړچې د څلورو خواو نه مکې ته ننوځي . ټولې ډلې په بریالیتوب او پرته له وینو توییدلو څخه ښار ته ننوتلې ، او یواځې هغه ټولۍ چې د خالدبن ولید رض تر قوماندانۍ لاندې وه د ځینو کافرانو د مقاومت سره مخامخ شوچې حضرت خالد رض ورته ماتې ورکړه او مغلوب شول

پیغمبر ﷺ د کعبې د خونې ټول بتان مات کړل او د مسلمانانو د لښکر څو ډلې یې د مکې د شاوخوا قبیلو ته د اسلام د بلنې لپاره واستولې چې ټولې په بریالیتوب سره راستنې شوې .

د خدای رسول ﷺ لا په مکه کښې وُچې د هوازن قبیلې د خپلو تړون لرونکو قبیلو سره تکل وکړچې د مسلمانانو سره وجنګیږي ، پیغمبر ﷺ د هوازن د قبیلې له تکل څخه خبر شو او د هغوی مقابلې ته راووت ، خو د حنین په تنګي کښې ورته کافران پټ ناست وو ، او سهار وُچې لښکرو

يې وربانديې سخته او ناڅاپي حمله وکړه ،چې د هغې له امله د اسلام لښکر تيت و پرک شو او يو شمېر مسلمانان ترې شهيدان شول . د اسلام پېغمبر^ص^ په بواځې ځان ورسره مقاومت وکړ او په لږ وخت کښې مسلمانان د آنحضرت^ص^ په چاپېر راټول شو او دښمن ته يې ماتې ورکړه ، د هوازن د قبيلې مشر مالك د بنی ثقيف د قبيلې سره طائف ته وتښتېد او په قلعه کې ننوتې ځای پر ځای شو. پېغمبر^ص^ طايف کلابند کړ ، خو شل ورځې وروسته يې کلابندي خوشې کړه . وروسته تر دې پېغمبر^ص^ د حنين ولجه شوې مالونه د مجاهدينو ترمينځ وويشل او د عمرې اداکولو لپاره مکې ته لاړ او د هجرت نهم کال ؤ چې مدينې منورې ته راستون شو .

په دې کال د عربستان د مختلفو قبيلو نمايندګان مدينې ته راتلل او خپل اسلام يې اعلانوه ، چې دا کال د نمايندګانو د کال په نامه يادوي .

د اسلام پېغمبر^ص^ په مدينه کښې د قبيلو د نمايندګانو په هرکلي مشغول ؤ چې د مسلمانانو د مقابلې لپاره د روميانو له تيارېدلو څخه خبر شو . آنحضرت^ص^ مسلمانانو ته حکم وکړ چې د روم په لورتګ ته ځانونه تيار کړي .

که څه هم منافقانو ورانی او تخریب کاوه، خو پیغمبر د مسلمانانو د پرش -
(۳۰،۰۰۰) زره کسیز لښکر تیار کړ او پخپله یې د هغه مشري په غاړه واخېسته
او د هجرت د نهم کال د رجب (بزرگی) په میاشت کښې د روم په لور روان
شو. په دغه وخت کښې د روم مرکز د انطاکیه ښار وه چې په شام (سوریه)
کښې واقع وه.

د اسلام لښکر د سختو او اوږدو تللونه وروسته د تبوک په نامه
د روم پوله ایزې سیمې ته ورسید، خو رومیان چې د مسلمانانو له حرکت
څخه خبر شوي وو، خپل لښکرې له سرحدونو څخه د خپل هېواد د ننه
خواته راغوښتې و. د اسلام پیغمبر لس ورځې د خپل لښکر سره په تبوک
کښې ؤ او د روم او عربستان د سرحدي سیمو د واکمنانو سره یې د سولې
تړونونه لاسلیک کړل.

د دغو تړونونو پواسطه د عربستان سرحدونه د رومیانو له تیري
څخه خوندي او بچ پاتې شول. بیا د اسلام پیغمبر د خپل لښکر سره -
مدینې ته راستون شو. د پیغمبر دا سفر د تبوک د غزا په نامه یادیږي.

د تبوک تر غزا وروسته د بنی ثقیف قبیلې هم اسلام قبول کړ .

## تمرین :

۱- د حدیبیه په سوله کښې د قریشو نماینده څوک وُ ؟

۲- د حدیبیه د سولې شرایط بیان کړئ ؟

۳- د حدیبیې د سولې شرایط د مسلمانانو په ګټه وُ، که په تاوان ؟

٤ - د اسلام پیغمبر (ص) د حدیبیې تر سولې وروسته کوم کارونه وکړل ؟

۵- پیغمبر (ص) د خیبر دیهودیانو سره څه وکړل ؟

٦- مسلمانانو په موته کښې د چا سره جنګ وکړ او د جنګ نتیجه څنګه وه ؟

۷- د حدیبیه تړون د چا لخوا او څنګه له مینځه لاړ ؟

۸ - په حنین کښې کومې قبیلې د مسلمانانو سره جنګ وکړ او د جنګ نتیجه څه وه ؟

۹- مکه په کوم کال او څرنګه فتح شوه ؟

۱۰- د تبوک غزا تشریح کړئ ؟

# دریم فصل

## دهجرت لسم کال او حجة الوداع

د هجرت د نهم کال د حج په موسم کښې پیغمبر ﷺ خپل لومړی خلیفه حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د روسو و (۳۰۰) تنو مسلمانانو سره حج ته واستوه او بیا یې حضرت علی رض ته حکم وکړ چې مکې معظمې ته لاړ شي او د عرفات په ورځ د برائت سورة تلاوت کړي. تر دغه وخته پورې مشرکانو له کعبې څخه طواف کاوه، او د طواف څخه منع شوي نه و. خو د وحې په نازلیدو سره د هغوی طواف او په حج کښې گډون کول منع شو.

حضرت علی رض د پیغمبر ﷺ په حکم اعلان وکړ چې:

د خدای رسول خلکو ته څلور میاشتې مهلت ورکړی دی چې خپلو کورونو ته راشي. تر څلورو میاشتو وروسته هیڅ کوم مشرک د پیغمبر (ص) تعهد او ژمنه نه لري، بل کال ته هیڅ کوم مشرک حج ته نشي راتلای او څوک

حق نه لري چې د ناپوهۍ د وخت په شان په بربنډ ځان طواف وکړي ، او
هیڅ کوم کافر به جنّت ته داخل نشي ......» .
وروسته تر هغې چې حضرت علی کرّم الله وجهه د برائت د سورة آیتونه
او د پیغمبر صلی الله علیه وسلم حکم د حج په موسم کښې ولوست . د عربستان مشرکان
وپوهېدل چې اسلام په هیڅ ډول د بت پرستۍ کوم تکی پخپل حال نه پرېږدي .
نو ځکه د هغو قبیلو نمایندګان چې تر دغه وخته پورې یې شرک کاوه یې لړځنډه
مدینې ته لاړل او د خپلو قبیلو له خوایې د اسلام منل اعلان کړل .
د عربستان په جنوبي برخو یعنې یمن ، حضرموت او نجران کښې
عیسویان او بت پرستان وو ، چې پوښمېرېې تر دغه وخته پورې په خپلو
عقیدو پاتې و .
د خدای رسول د مسلمانانو د لښکر سره خالد بن ولید نجران ته
واستوه . نجرانیان مسلمانان شول او خپل نمایندګان یې مدینې منورې
ته ولېږل . حضرت علی کرّم الله وجهه ته امروشو چې د پوښمېر مسلمانانو
سره یمن ته لاړشي ، تر څو د هغوی د ریځ هم د اسلام په وړاندې روښانه

## حضرت محمّد صلی الله علیه وسلم او اسلام ته د خلکو را بلل:

د قریشو مشرکانو په لومړي سر کښې د حضرت محمّد (ص) بلنې ته دومره پام نه درلوده او اهمیت یې نه ورکاوه ځکه هغوی لېدل چې حضرت محمّد (ص) د هغوېې وزلو او فقیرانو سره مینه او علاقه درلوده چې مسلمانېدل به. کافرانو د کمزورو او بېوزلو مسلمانانو سره د حضرت محمّد (ص) ناسته ولاړه سپکه ګڼله او په انحضرت (ص) پورې یې خندل او ویل به یې چې دا څنګه رسول دی چې د خوارو او بېوزلو خلکو سره کښېني او غواړي چې خپل دین د هغوی په واسطه بریالی کړي.

د مسلمانانو شمېر ورځ په ورځ زیاتېده او حضرت محمّد (ص)

شي .يمنيانو په لوړې سرکښې د اسلام له منلو څخه ډډه وکړه او د -

حضرت علیؓ سره یې جنګ شروع کړ خو مغلوب شول، او د اسلام منلو

ته یې غاړه کېښېښوده. حضرت علیؓ په یمن کښې وُچې د هجرت د لسم کال

د ذی القعدې (میاشتې) میاشت شوه، پیغمبرؐ د حج تصمیم ونیو او مسلمانانو

ته یې د تیارېدو حکم وکړ.

پیغمبر صلی الله علیه وسلم د میاشتې د میاشتې په شلمه نېټه د سلو زرو (۱۰۰,۰۰۰)

مسلمانانو سره چې د ټول عربستان له کوټ کوټ څخه مدینې ته د حج

په نیت راغلي وو، د مکې په لور حرکت وکړ. کله چې پیغمبرؐ ذوالحلیفې ته

ورسېد نو شپه یې هلته تېره کړه، په سهار کښې یې د ټولو مسلمانانو سره

احرام وتاړه او د تلبیې ویلو په حال کښې د مکې په لور روان شو.

تلبیه:

لَبَّيْكَ اَللّٰهُمَّ لَبَّيْكَ - لَبَّيْكَ لَا شَرِيْكَ لَكَ - لَبَّيْكَ . اِنَّ الْحَمْدَ وَالنِّعْمَةَ

لَكَ وَالْمُلْكَ لَا شَرِيْكَ لَكَ

پیغمبر صلی الله علیه وسلم چې د مسلمانانو سره مکې ته ورسېد او د ټولو د حج مراسم

سرته ورسول، په دغه وخت حضرت علی رض له یمن څخه راستون شو

او د مسلمانانو سره یې په حج کښې ګډون وکړ. د اسلام پیغمبر د -
ذالحجې (لوی اختر) د میاشتې په نهمه نېټه عرفات ته لاړ او د عرفات
په خطبه کښې یې عامو مسلمانانو ته وفرمایل:

پوه شئ چې د جاهلیت د کارونو ټول یا ته شونې مې تر پښو لاندې
کړي دي، عربي پر عجمي او عجمي پر عربي غوره والی نه لري، تاسې
ټول د آدم علیه السلام اولاد یاست او آدم علیه السلام له خاورې څخه ؤ.
مسلمان د مسلمان ورور دی او ټول مسلمانان یو تر بله وروڼه دي.
د جاهلیت ټولې دعوې باطلې شوې دي. او س ستاسو وینو،
ستاسو عزتونو او ستاسو د مالونو احترام همدغه شان پر یو بل لازم
دي لکه څنګه چې نن په دې میاشت کښې د حج په ورځ او په دغه ښار
کښې پر تاسو لازم دی.

بیا یې منیٰ ته تشریف یوړ او هلته یې هم همدغه بیان تکرار کړ او
ور باندې یې زیاته کړه: پام کوئ چې تر ما وروسته د ګمراهۍ په لور

وانه وړئ ، اوېو د بل ورمېږو نه غوخ نه کړئ ، بېرته به خدایځ
ته ورستانه شئ ، هلته ستاسو د کړو پوښتنه کېږي .
واورئ چې که تور حبشي ستاسو امير اوسي او هغه د خدایځ د کتاب سره سم
اجرأت وکړي د هغه حکم ومنئ او اطاعت يې وکړئ .

زه دوه شيان په تاسو کښې پرېږدم ، که ور باندې منګولې ټينګې کړئ
هېڅکله د رتځه لاره نه ورکېږي ، او هغه ښکاره څېزونه دي :
د خدای کتاب ، او د پيغمبر سنت .

تردې لارښوونې وروسته يې پوښتنه وکړه : آيا ما دا پيغام تاسو ته
ورسوه ؟

خلکو ووېل : هو يا رسول الله .

وېې وفرمايل : ای خدايا ته شاهد يې ، او خلکو ته يې وفرمايل :
حاضر خلک دې دا پيغام غايبو ته ورسوي .

پيغمبر صلى الله عليه وسلم وروسته ترهغې دا آيت خلکو ته ولوست :
الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ الْإِسْلَامَ دِينًا

د خدای رسول د حج ترادا کولو او د نورو مناسکو او قربانۍ کولو

وروسته مدینې ته روان شو، داج د حج وداع یا حج بلاغ په نامه

یادېږي .

پیغمبر په مدینه منوره کښې د اسامه بن زید په قوماندانۍ چې

اتلس (۱۸) کلن ځوان ؤ یو لښکر تیار کړ او شام ته یې واستوه. کله چې

لښکر د جرف په نامه سیمې ته چې مدینې ته نژدې وه ورسېد، د خدای

پیغمبر ناروغ شو او ناروغي یې سخته شوه چې دا کار په جرف کښې د

لښکر د تم کېدو سبب شو .

خلکو د اسامه د عمر د لږوالي په خاطر د هغه د قوماندانۍ په هکله

د نارضایتۍ کونکوسی پیل کړ، د اسلام پیغمبر که څه هم سختې تبې نیولی

ؤ، جومات ته لاړ او د اسامه د قوماندانۍ او شام ته یې د هغه د استولو

په باره کښې بیا تائید او ټینګار وکړ . بیا د عایشې صدیقې کور ته لاړ

او وې ښوول کولای چې جومات ته راوو ځي او ابوبکر صدیق رض ته یې

هدایت وکړ چې خلکو ته د جماعت لمونځ وکړي .

د ربیع الاول دلومړي خور، دولسم او د دوشنبې ورځ وه چې د پیغمبر صلی الله علیه وسلم د ناروغتیا او تبې سختوالی لږ څه کم شواو دلمانځه ادا کولو لپاره جومات ته لاړ، او د لمانځه اداکولو نه وروسته یې خلکو ته داسې وویل:

« ای خلکو اور بل شو او فتنو د تیې تیارې شپې د بحر کو په شان مخ ښکاره کړ، په خدای چې زما پر ضد کوم سند نه لرئ، په خدای چې د قرآن مې حلال کړي او د قرآن حرام مې حرام کړي دي.

زه د خپل خدای سره یوځای کیږم او تاسې به هم له ما سره پیوست شئ د لومړنیو مهاجرینو سره ښې وکړئ او مهاجرین د ې هم یو تر بله سره ښکي وکړي. د انصارو سره ښکي وکړئ، د هغوی د ښکو کارو عذر ومنئ او له بدکارانو څخه یې تیر شئ....»

د خدای رسول کور ته راغی او ناروغتیایې شیبه په شیبه زیاتیده سخته تبه پرې راغلې وه او په همدې شیبه کښې پرې عبدالرحمن بن ابوبکر را ننوت چې مسواک یې په لاس کښې وه.

انحضرت صلی الله علیه وسلم تري مسواك واخیست اوخپل غابنونه
يې په سختۍ سره ور باندې مسواك کړل. د خدای کران پیغمبر صلی الله علیه وسلم
په همدې ورځ له د نیا څخه وکوچید.

مسلمانانو د انحضرت پاك اومبارك مړی د ربیع الاول په دیارلسم د
سه شنبې په ورځ دعایشې صدیقې په کورکښې چې هملته وفات
شوی وُ، ښخ کړ.

د رسول الله صلی الله علیه وسلم ترکوچید و وروسته مسلمانانو د
ابوبکر صدیق رضی الله عنه سره بیعت وکړاو ابوبکر صدیق د خدای د
احکامو او د پیغمبر صلی الله علیه وسلم د سنت سره سم په خپل کار پیل
وکړ.

## تمرین :

۱- د هجرت د نهم کال د حج په ورځو کښې حضرت علی کرم الله وجهه د خدای د پیغمبر صلی الله علیه وسلم لخوا د کوم کار لپاره مکې ته واستول شو ؟

۲- د اسلام پیغمبر ﷺ د هجرت په لسم کال مکې مکرمې ته څنګه اوځو - مسلمانانو سره ننوت ؟

۳- هغه خطبه چې د اسلام پیغمبر ﷺ د هجرت په لسم کال د عرفات په ورځ د حج ادا کولو په وخت کښې وویله ، شرحه کړئ ؟

٤- پیغمبر ﷺ د هجرت په لسم کال له حج څخه تر راستنیدو وروسته په مدینه منوره کښې څه وکړل ؟

٥- د هجرت د لسم کال د ربیع الاول په (۱۲) حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د خپلې ناروغتیا په حال کښې مسلمانانو ته په جومات کښې څه وویل ؟

٦- د اسلام پیغمبر ﷺ په کومه ورځ له دنیا څخه کوچ وکړ او مبارک جسد یې چیرته ښخ شو ؟

# څلورم فصل

## د افغانستان تاریخ

### ختیځ «د تمدن ځانګو» :

د لاس ته راغلو ښو نښانو څخه څرګندیږي چي د نړۍ د تمدن ډېر پخواني مرکزونه هغو هېوادونو کښې مینځته راغلي چي د اروپا ختیځ لوري ته واقع دي او اروپایان یې ختیځ هېوادونه بولي . لکه بین النهرین ، سومر اکد ، بابل ، آشور او اریانا تمدن د مدیترانې د سمندر د جنوبي څنډې (مصر) او ختیځې څنډې (فنیقي تمدن) ، عبراني تمدن د کوچنۍ آسیا هند او چین تمدن .

### د آریانا «افغانستان» تمدن :

له هرڅه نه مخکي باید وپوهیږو چي زموږ د هېواد پخواني نوم آریانا وُ چي د تاریخي شواهدو له مخې دا نوم زموږ په هېواد او خپلو هېواد والو -

پورې اړه لري.

د آريانا په ستر او وير ملك كښې زياتې سيمې راتلې، چې د سند له درياب څخه د اوسني ايران ترمركزي دښتې پورې د ايران ختيځ برخه او په شمال كښې د پامير ترلوړې سطحې او آمو درياب او كله ترسيحون (سير دريا) پورې او په جنوب كښې يې ترعمان خليج پورې سيمې پكښې شاملې وې.

د اريائيانو اصلي ټاټوبی هندوكش دی، او د نفوس او كمې ځمکې د زياتوالي، د هوا د سوړوالي او ځينو نورو علتونو په اساس يې خلكو هرې خواته هجرت وكړ، چې يوې ډلې اريائي مهاجرينو په اروپا كښې د دانيوب د سيند جنوب لورته حركت وكړ او د يونان لرغوني ملك ته ورسېدل. د اريايانو نورو ټولګيو له هندوكش څخه هند او ايران ته هجرت وكړ، چې ډېرو مشهورو ټولګيو يې په هندكښې د لويو بهارتيانو او په ايران كښې د آريايانو د مشهورو ټولګيو په نوم قبيلې جوړې كړې چې د ماديانو او فارسيانو په نامه يادېدلې. د آريانا د خلكو دا مهاجرتونه د (۱۹۰۰) څخه

تر (۱٤۰۰) قبل المیلاد پورې وشو.

بلخ د آریایانو دلومړي دولت دمدنیت ځانګه وه چې بیاپاچا جمشید د آریانا لومړی پاچا په بخدي (بلخ) کښې په عدالت او ښه سلوك حکومت کاوه. په آریایانو کښې بدخلقي، بدویل، شخړه، ضرر، دوکه او بدني - نیمګړتیا لږه لیدل کیده.

دآریایانو مجلسونه اوغونډې د ننیوغونډو په شان وې چې د نړۍ په اکثرو ممالکو کښې اوس هم رواج لري، اوهغه دعوامو غونډې او اعیانو (مشرانو) غونډې وې. دعوامو مجلس داسې غونډه وه چې په قریه کښې یې د هرکلي ستونزې هوارولې، اوپه هره قریه کښې یې معلوم ځای او کوټه درلوده.

د اعیانو (مشرانو) په مجلس کښې به یې که څه هم دولس نامتو او یادو کسانو برخه درلوده خوعوامو به هم پکښې ګډون کاوه. پاچا به هم د مشرانو په غونډه کښې ټاکل کیده.

په دغه ترتیب ویلای شو چې په لرغوني آریانا کښې به د خلکو پېسلا

نه پواځې داچې خلک د اسلام خواته رابلل بلکې بُت پرستي يې منع کوله، او بت پرستو کافرانو ته يې ناپوهان ويل ځکه چې هغوی په خپل لاس د جوړو کړو بتانو عبادت کاوه، له دې کبله د قريشو کافرانو خطر او اندېښنه احساس کړه او اسلام ته د حضرت پيغمبر(ص) د بلنې د مخنيوي په فکر کښې شول.

د قريشو مشرکينو لومړی ځل حضرت پيغمبر(ص) دارالندوه[1] ته وغوښت او خپل پښتنها دونه يې ورته په دې ډول وړاندې کړل: «له دې کار نه لاس واخله که د مال او شتمنۍ لاس ته راوړل غواړې نو دومره شته به درته راغونډ کړو چې له مونږ ټولو نه به لوی شې او که هدف دې مقام او پاچاهي ته د رسيدلو وي دا مقام هم تا ته درکوو، که ناروغ يې مونږ دې

---

(۱) دارالندوه د قريشو د مشرانو د غونډو ځای و چې د کعبې د څوني ترڅنګ وه او لومړی ځل په «۴٤۰» ميلادي کال د قريشو د قبيلې د يو مشر قصي له خوا جوړه شوې وه.

اوخو ښه ډول انتخابي او دموكراسي حكومت رامينځته كيده .

په آريايانو كښې ښځې پرلېښو دلو عموميت درلود . آريائي نارينه پخپل تولنيز ژوند كښې مكلف وچې واده وكړي او واده به يې په خاصو مراسمو سره جوړوه . د آريايانو په بوه سندره كښې راځي چې :

" ښځه د نرلپاره په هماغه اندازه ضرور ده لكه څومره چې ژرۍ د ليندۍ لپاره ضرورده ".

آريايان د لرگي ، فلزاتو ، څَوَر ( پوست رنګولو ) او پوزي اوبدلو د صنعت سره روږدي وو . د لرگي څخه يې جنګي عرادې او كراچې جوړولي د هغو په فلزي صنايعو كښې اهنګري ، مسګري او زرګري شامله وه . آريايانو روغتيا او د اندامو ښكلا ته اهميت وركاوه . د مخالفانو او دوښمانانو



په راپیدا کیدو سره په آریایانو کښې د وطن څخه د دفاع کولو او جنګېدلو احساسات او روحیه زیاته شوه، چې جنګي پهلوانان او آزمایل شوي او د اوسپنیزو متانو سري پکښې راپیدا شول.

ښځې، ماشومان او بوډاګان د جنګي کارونو څخه معاف وُ، خو ځوانانو به چې هره دنده درلوده د جنګ میدان ته حاضرېدل.

د آریانا عسکري قوه په درو بنسټیزو برخو وېشله شوې وه، لکه د سپرو، پلیو او جنګي عرادو برخې. لکه څنګه چې د آریانانو ناریته جنګیالي و، روحانیانو او شاعرانو به هم خلک د جنګ په جبهو کښې په خاصه توګه استقامت او زړورتیا ته هڅول.

پاچا او قوماندانان به يې په جنګي عرادو کښې سپاره و او په جنګ کښې به يې کډون کاوه. آریایانو لیندۍ او غشي، نېزې، ګڅینو غزې (چپڼه)، زغرې، او سپنیزې خولۍ، فلزي ښاخې او په زهرو ککړ غشي د وسلې په ډول کارول.

# دغزنویانو او غوریانو امپراطوري

له نن څخه دوه زره کاله د مخه د آریائیانو یو قوم د کوشانیانو په نامه د افغانستان په شمالی برخو کښې یوه لویه پاچهي جوړه کړه.

کوشانیانو دلویو او کوچنیو کوشانیانو په نامه دوه ځلې پاچهي وکړه. ترلویو کوشانیانو وروسته وړو کوشانیانو د کابل په وادي، جلال آباد جنوبي برخو بامیانو او نورو ځایونو کښې حکومت جوړکړ، ځکه کی د اسلام د دین ترڅرګندېدو د مخه کوچني کوشانیان زمونږ په هیواد کښې پاچیان ؤ، ترڅو چې حضرت عثمان رضی الله عنه د خلافت په وخت کښې د اسلام بریالي مجاهدین کابل ته راورسېدل او تراوږدو جهاد ونو او کوښښونو وروسته یې له کوشاني اعرج شاه څخه حکومت ونیو او بیا ورو ورو د اسلام نفوذ زیات شو او زمونږ نیکونه مسلمانان شول.

د عباسیانو د خلافت په دوره کښې د طاهر فوشنجي په نامه یو زړور سړی چې د عباسي دولت سپه سالار ؤ، او بنیاد خراسان

والي شو، په «۸۲۰»م کال د افغانستان خپلواکي اعلان کړه، او تر هغه وروسته طاهریانو، صفاریانو، سامانیانو او غزنویانو چې ټول افغانان و، ډېرې لویې لویې پاچهي جوړې کړې.

په تېرو دوه ؤ ټولکیو کښې مو د ابدالي احمدشاه بابا له دورې نه د ببرک تر لاس کښېنولي حکومت پورې د افغانستان تاریخ ولوست یعنې د افغانستان په معاصر تاریخ مو د (۱۷٤۷)م او (۱۹۸٦)م کلونو ترمنځ یو ځغلنده نظر واچوه، چې په افغانستان کښې کا بو د دروپېړیو پېښې پکښې راتلې، سبا کال به د افغانستان تاریخ د (۱۰۰۰)م کال نه تر (۱۷۰۰)م کال یعنې د هوتکیانو د دورې تر پای او ابدالیانو تر شروع کېدو پورې ولولو.

# غزنویان

وروسته ترهغې چې الپتګین د بلخ د سامانیانو د توانمنې امپراطورۍ په دربار کښې چې د پاچهي مرکزیې په بخارا کښې و، سپه سالار شو، نو د هغه اختلاف له کبله چې د ساماني پاچا او الپتګین ترمینځ پیدا شو. الپتګین د خپلو قواو سره غزنې خواته راغی او په غزنې کښې یې د خپلواک حکومت اعلان وکړ. د الپتګین ترمړینې وروسته د هغه زوم چې سبکتګین نومېده او یو هوښیار او په کار پوه سړی و، په غزنې کښې حکومت ته ورسید.

سبکتګین د غزنوي مشهور دولت بنسټ اېښودونکی دی، سبکتګین د کابل برهمن شاهان چې بُت پرستان و له افغانستان څخه وشړل. او د افغانستان په ځینو سیمو کښې چه خلک مسلمانان شوي نه و، هغوی یې مسلمانان کړل، او افغانستان یې بیا د ملوک الطویفي حالت څخه وژغوره او سیاسي یووالی یې پکښې راوست.

د سبکتګین تر مړینې وروسته د هغه زوی سلطان محمود غزنوي د دولت د چارو واکې په لاس کښې ونیول .

## سُلطان محمُود غزنوي :

سلطان محمود په ۹۹۸ میلادی کال کښې ۲۷ کلن وُچې پاچاشو، سلطان محمود پرهیزګار، زړه ور او ماتې نه منونکی – ځوان وُ ، سلطان محمود د ځوانۍ په لومړیو وختوکښې د خپل وخت علوم زده کړل ، په قرآنکریم ، احادیثو او اسلامي شریعت پوهېده. اداري اصول یې له خپل پلار څخه یاد کړي و ، د جنګی تکتیکونو او فن یې ساری نه وُ. دده د پاچهی دوره د افغانستان په تاریخ کښې زرینه دوره شمېرل کېږي چې اروپائیان یې هم نوم په احترام اخلي .

سلطان محمود چې د اسلام د خپرولو فکر درلود ، نو د دې مقصد لپاره یې تر هر څه ړومبی د هېواد د کورني حالت ښه کولو ته ملاوتړله ښورښونه یې غلي کړل ، سیستان ، غور ، خوارزم او اصفهان یې-

دخپل هېواد سره یوځای کړل او بیایې د اسلام د دین د پراخولو او په هندوستان کښې د مسلمانانو د امنیت لپاره د هند فتوحاتو ته پام واړوه چې په هند کښې د سلطان محمود له جنګونو څخه د سومنات مشهور جنګ دی.

سلطان محمود اورېدلي وُچې د هندوانو لویه بتخانه په سومنات کښې ده، نو د درې سوو زرو (۳۰۰،۰۰۰) افغانو مجاهدینو سره د ملتان او اجمیر له لارې د راجپوتانې په وچو وخوت او پر سومنات یې حمله وکړه. که څه هم د هند ټول راجه ګان د بتخانې د دفاع او سلطان محمود سره د جنګېدو لپاره راغونډ شوي وو، خو په ډېر سخت او تېز جنګ کښې په زرونو هندوان په وینو کښې لېت پېت شول، او نوروپې پرته له تسلیمېدو بله چاره نه درلوده، بُت ماتونکي محمود بتان مات کړل او بریالی راستون شو. *

---

* بت شکن محمود را یاد کړئ افغانانو :- چې په هند کښې به ترې تنګ ټول کافران وُ

همدارنګه سلطان محمود په ایران برسېره د عراق ځینې سیمې هم فتح کړې .

د ترکانو د یوې قبیلې سره چې د سلجوقیانو په نامه یادېدله جګړه وکړه سلجوقیانو د افغانستان په شمالي ولایتونو کښې رمې څرولې او شپونکیتوب یې کاوه ، د حکومت خیال درلود چې سلطان محمود وځپله . په دغه ترتیب د افغانستان قلمرو د ایران له قزوین څخه د شمالي هندوستان د ستلج ترسیند پورې او له خوارزم څخه ترېحیره عرب پورې پراخ شتیا وموندله .

سلطان محمود د نړۍ له سترو پاچیانو او لویو فاتحینو څخه شمېرل کېږي ، لکه څنګه یې چې د هېواد په پراخولو او فتوحاتو کښې ساری نه درلود په همدې ترتیب د هېواد په ترقۍ او پرمخ بېولو کښې هم بې جوړې وه . غزنې یې داسې ودان کړ چې د ښارونو د ناوې په نامه یې یاد کړ .

سلطان محمود ته که خدای هرڅومره سترتوب او اوچتوالی ورکړی وه خو د خلکو سره یې نژدې تماس درلود .

د ولس د هر کوچنی هم دغه پاچا ته خپل شکایت وړاندې کولای شو . سلطان محمود غزنوي د «۵۹» کلونو په عمر په «۱۰۳۰»م کال وفات او په غزني کښې ښخ کړه شو .

## سلطان مسعود (۱۰۳۰ - ۱۰۴۱ میلادی)

د سلطان محمود تر مړینې وروسته د هغه زوی سلطان مسعود پاچا شو . مسعود تحصیل کړی و او په عربي او ترکی ژبو پوهېده ، په دري او عربي ادب کښې یې لاس درلود . مسعود غښتلی ، زړور ، ظالم ، بدګمانه او ځان منونکی سړی و . مسعود د دولت لوړ رتبه صاحب منصبان په ـ بندیانولو او تعقیبولو سره له مینځه یوړل . که څه هم د مسعود خارجي سیاست بد نه و ، خو داخلی سیاست یې هم دومره ښه نه و . له دې کبله د خپل ولس له همکارۍ څخه یې برخې پاتې شو . ګاوندیانو یې له کمزورتیا څخه ګټه واخیسته او زړور شول .

سلجوقیانو چې د سلطان محمود په اجازه د افغانستان په شمالي

ولایتونوکښې استوګنه پیل کړې وه ، د قدرت لاس ته راوړو-
فکر ورسره پیدا شو . په هغه جنګ کښې چې د افغانستان په تاریخي
ولایت مرو کښې د مسعود او سلجوقي طغرل ترمینځ وشو مسعود-
ماتې وخوړه ، او هند ته لاړ چې بیا جنګ ته تیارې ونیسي خو هلته یې
پوځ بغاوت وکړ او مسعود یې بندي او د هغه مشر ورور احمد یې چې
د مسعود له لاسه ړوند او بندي شوی ؤ خپل مشر وټاکه او مسعود
هم په دغه اخ و ډب کښې آخر د «٤٥» کلونو په عمر او درې کلونو -
حکومت نه وروسته ووژل شو .

په دغه ترتیب د افغانستان اکثره ولایتونه تر هغه وخته پورې د -
سلجوقیانو تر لاس لاندې پاتې شول ترڅو چې د افغانستان غوري قواوې
راغلې او سلجوقیان یې له غزنی نه او پاتې غزنویان یې د هند د لاهور نه د
تورې په زور وایستل .

د غزنویانو په زمانه کښې د خراسان (افغانستان) لوېې ښارونو لکه بلخ
هرات ، کابل ، مرو ، او نیشاپور د منځنۍ آسیا ستر تجارتي مرکزونه وو.

زموږ په خپلو پیسو دارو درمل کوو ».

د اسلام پیغمبر (ص) د هغوی په ځواب کښې وفرمایل : « زه له تاسې څخه پیسې، مقام او پاچاهي نه غواړم او ناروغ هم نه یم. زه د خدای رسول یم او خدای تاسو ته رالیږلی یم ترڅو تاسې د خدای دین ته راوبلم، پر یو خدای او د هغه د پیغمبر په رسالت ایمان راوړئ کړتاسو د اسلام دین ومنئ په دنیا او اخرت کښې نیکمرغه کیږئ او که زما بلنه ونه منئ زه صبر کوم ترڅو لوی خدای زموږ او ستاسو ترمینځ فیصله وکړي ».

کله چې د قریشو کافرو د پیغمبر ځوابونه واریدل یو شمیر یې د پیغمبر (ص) تره ابو طالب ته لاړل او ورته یې وویل چې : حضرت محمد (ص) له دې کار منع کړه او یا موږ ته اجازه راکړه چې موږ یې کار خلاص کړو، ابوطالب ورته داسې خبرې وکړې چې د هغوی د خبرو منل او نه منل ترې نه معلومیدل. کافرانو څو ورځې وروسته بیا ابو طالب ته لاړل او اخطار یې ورکړ چې موږ نور صبر نشو کولای، حضرت محمد (ص) نور

دورېښمو دلارې بوه برخه چې د غزنوي دولت له قلمروڅخه تېرېدله او لوی کاروانونه وربانده روان و ، چين او هندې د مدیترانې سره وصلوه . د غزنی ښارچې په منځنۍ آسیا کښې د دري ادب مرکز و د عنصری ، بلخی ، سنائی ، سعود سعد او نورو په څېر شاعرانو ځای ځای ژوند تېروه .

## تمرین :

۱- د آریایانو اصلي ځانګو کومه سیمه وه او خلکو ترې چیرې هجرت وکړ ؟

۲- د آریانا په لوی ملک کښې کومې سیمې شاملې وې ؟

۳ آریائي عسکرڅو برخې درلودې ؟

٤- د اسلام د خپرېدو په وخت کښې په افغانستان کښې کومې کورنۍ پاچهي کوله ؟

۵- د عباسیانو په وخت کښې د افغانستان خپلواکي چا اعلان کړه ؟

٦- د غزنوي دولت بنسټ ایښودونکی څه نومېده او په کوم ترتیب
یې په افغانستان کښې سیاسي یووالی راوست ؟

٧- سلطان محمود په کوم کال پاچا شو، او د هند تر فتوحاتو -
د مخه یې کومې سیمې د هېواد سره یوځای کړې ؟

٨- په هند کښې د سلطان محمود فتوحات د کوم مقصد له -
مخې وُ ؟

٩- سلطان مسعود په کوم کال پاچا شو، او د سلجوقیانو څخه
یې ولې ماتې وخوړه ؟

# غوریان

په پخوا وختو کښې د غور ولایت هغو پراخو علاقو ته ویل کېده چې د هرات او غزني ترمینځ د بابا د غر او سفیدکوه د لړۍ غرونه درې پکې راتلې.

د اسلام په دوره کښې د غور د سوري محلی امیرانو څخه لومړی سړی امیر فولاد شنسبي دی چې په اتمه پېړۍ کښې یې د افغانستان د خلکو په ملی غورځنګ کښې د امویانو د خلافت پر ضد د ابومسلم خراساني سره مرسته وکړه.

د غور د محلي پاچیانو په اولاده کښې یو ادیب ځوان چې عزالدّین حسین نومېده او د غور ټولې علاقې یې د خپلو اوو «۷» زامنو ترمنځ ووېشلې د عزالدّین حسین یو زوی چې قطب الدین نومېده پوره خپلواک شو، او ملک الجبال عنوان یې ځانته غوره او د فیروزکوه ښار یې جوړ کړ. خو قطب الدّین په کورنیو جنګو نو اخته شو او له ناچارۍ نه یې د غزني د پاچا دربار ته پناه یوړه. د غزني پاچا بهرام شاه نومېده چې تر مسعود وروسته پاچا شوی

ؤ، او پاچهي يې کمزوري وه . خوقطب الدّين د سلطان بهرام شاه لخوا ووژل شو او سوري کورنۍ يې غچ اخيستلو ته مجبوره کړه، او همدا د غچ اخيستلو حق وُچې علاوالدّين حسين جهانسوز د غزني په ښار حمله وکړه، او بهرام شاه وتښتېد، او د غزني ښار په «۱۱۴۸» م کال علاوالدين فتح کړاو د غزني ښکلي ښار ته يې اور واچوه چې د غزني ښار په اوو شواروزو کښې په اور وسوځېد .

علاوالدّين د غزني تر نړېدلو وروسته چې د علم او فرهنګ، هنر او اقتصاد مرکز او د تېرو پېړيو د تمدنونو حاصل و، د قندهار او بست له لارې غور ته ستون شو او په «۱۱۵۵» م کال وفات شو . او خپل بد نوم يې پرېښود .

# سلطان غياث الدّين ( ۱۱٦۲ - ۱۲۰۱ ميلادي )

د علاوالدين حسين جهانسوز ورار غياث الدين په « ۱۱٦۲ » م کال د افغانستان پاچا شو او ورور يې شهاب الدين د کارنيزيون مشر منصبدار شو. دا دواړه ورونه د افغانستان د دې دورې په زړو تواڼمو پاچيانو کښې راځي.

غياث الدين د درې څلوېښتو کلونو په پاچهۍ کښې د وروستيو غزنوي پاچيانو د زمانې له لاسه وتلې سياسي برم تازه کړ. غياث الدّين د « ۱۱۷۸ - ۱۹۵ » م کلونو ترمنځ پښنبور، ملتان او لاهور فتح کړاو د ګجرات په مشهور جنګ کښې يې د هند راجګانو ته د درې سوو زرو ( ۳۰۰۰۰۰ ) عسکرو سره ماتې ورکړه. بنارس يې ونيو او تر اګزې پورې مختلف لارا وبيا يې ډيلي فتح کړ، او په دې ډول د غياث الدّين غوري د پاچهۍ خطبه د خزر د څنډې نه د جمنا ترغاړو پورې او د جيحون نه تر بلوجستان پورې ولوستل شوه.

غیاث‌الدین په «۱۲۰۱»م کال د «۶۳» کالونو په عمر په هرات کښې وفات شو او ځای یې خپل ورور شهاب‌الدین ونیو

## سُلطان شِهابُ‌الدِّین (۱۲۰۱ - ۱۲۰۵) میلادی:

سلطان شهاب‌الدین د خپل ورور غیاث‌الدین تر مړینې وروسته پاچا شو او خپل پراخه قلمرو یې په ښه تدبیر سره اداره کړ.

شهاب‌الدین په پنجاب کښې د را پېدا شوی ښورښ د غلی کولو لپاره روان شو او ښورښیان یې غلي کړل، او د هغوی مقاومت یې مات کړ خو غزنې ته په بېرته ستنېدو کښې د جهلم د سیند په غاړه د ښورښیانو له لاسه شهید شو، او تر دې وروسته غوري دولت مخ په ځوړ شو.

تر غوریانو وروسته د افغانانو نورمسلمان دولتونه هم د هندوستان په بېلا بېلو برخو او مختلفو وختونو کښې جوړ او یو په بل پسې ړنګ شول، تر څو چې په شپږو پېړیو کښې د دغه پراخ هېواد د تمدن او فرهنګ په تاریخ

کښې يوه نوې پاڼه راواوښته چې د هغې تشريح کول د هند په تاريخ پورې اړه لري.

## تمرين :

۱- د پخواني غور موقعيت واضح کړئ، او د ابومسلم خراساني په غور څنګ کښې چا کړون وکړ ؟

۲- کوم غوری پاچا پر غزني حمله وکړه، او د حملې علت يې څه وه ؟

۳- سلطان غياث الدين په کوم کال پاچا شو، او کومې سيمې يې په قلمرو کښې راتلې ؟

٤- غياث الدين څو کاله پاچهي وکړه او ډېر مهم جنګ يې کوم و ؟

٥- سلطان شهاب الدين د سلطان غياث الدين په وخت کښې څه وظيفه درلوده ؟

٦- شهاب الدين چېرې او د چا لخوا ووژل شو ؟

# د تیموري کورګاني اولاده په افغانستان کښي

تیمور چي په ګوډ تیمور مشهور او په منځنۍ آسیا کښي د سمرقند اوسېدونکی و، په ماوراالنهر کښي یې د چنګېز د واکمني اولادې له کمزورتیا څخه ګټه واخیسته او خپل ځان یې د امیر تیمور کورګاني په نوم اعلان کړ.

اسلامي هېوادونه د مغولي چنګېز او د هغه د اولادې د ځار ویتوب او ظلمه د کوحملو څخه لا ارام شوي نه و، چي بوه بله حمله پرې راغله او هغه د امیر تیمور د لښکرو یرغل او د هېواد پراخولو وه.

امیر تیمور چې سخت بې رحمه او بې کړکې و، ویل به یې:

« دنیا ډېره لویه نه ده او دا ارزښت نه لري چي ډېر پاچهان پکښې ټول نه ځائېږي د ټولي لپاره یو پاچا بس دی ».

امیر تیمور په دغه ټول فکر د ارلودو سره د « ۱۳۷۲ » او « ۱٤۰٤ » میلادي

کلونو ترمینځ وکړای شول چې منځنۍ آسیا، د روسیه ځینې سیمې
ایران، عراق، شام او هندوستان ونیسي. دوینو تویولو په جریان
کښې یې د نوموړو هېوادونو د خلکو د سرو نو څخه ځلي جوړ کړل.

په هغو جنګونو کښې چې تېمور په افغانستان کښې وکړل دوه ځلې د
افغانانو له لاسه ټپي او پښه یې ګوډه شوه، چې په ګوډ تېمور مشهور
شو. تېمور په «۱٤۰٤» میلادي کال مړ شو، او نیول شوې ځمکې یې د
(۳٦) زامنو او لمسو ترمنځ وویشل شوې.

هوښیار او پوه زوی یې میرزا شاهرخ نومېده، چې د پلار په زمانه
کښې یې د خراسان (افغانستان) زیاته برخه او ایران اداره کوله د خراسان
پاچا شو او هرات یې خپل پایتخت وټاکه.

## میرزا شاهرخ:

میرزا شاهرخ د تیمور تر مړینې وروسته په هرات کښې پاچا شو. د خپلې ښځې ګوهرشاد په مرسته د پلار ورانې ویجاړې سمې کړې او خپل ښکلې پایتخت هرات یې د عالمانو او فاضلانو مرکز کړ. هرات دده په وخت کښې د آسیا او اروپا د تجارتي کاروانونو د بدلېدو رابدلېدو مرکز و. د همدا اهمیت له مخې چې هرات په دې دوره کښې پیدا کړی و مورخان د خراسان له منځه نه هرات د ایټالیه د فلورانس سره مقایسه او پرتله کوي، ځکه چې دغو دواړو د عالمانو ملاتړ کاوه او د رنسانس[1] رامینځته کوونکي و.

---

(۱) رنسانس ترخاورو لاندې شوي علمي ژوندون دوباره نوښت، یعنې د علومو په ساحو کښې پرمختګ ته ویلې، چې په دې دوره کښې د چاپ ماشین او نور ماشین آلات اختراع شول.

له خپل کار نه منع شي که منع نشي تاسو دواړو سره به تر هغه وخته پورې جنګېږو ترڅو چې له موږ او تاسو څخه یوه خوا له مینځه لاړه شي ابوطالب چې د قریشو غوښ د ریځ ولېد نو موضوع یې د انحضرت (ص) سره راياده کړه او ورته یې وویل ! قوم دې ماته راغلی وه او ماته یې د جنګ اوراسره دا ډېکو یرې کولو ګواښ وکړ، را شه داسې کار وکړه چې زما او ستا د پاېښت سبب اوسي او ما د داسې کار په کولو مه مجبوروه چې له وسې مې وتی وي .

حضرت پیغمبر (ص) د ابو طالب په ځواب کښې وویل : « قسم په خدای چې که قریش راته لمر په ښی لاس کښې او سپوږمۍ په کیڼ - لاس کښې کښېږدي له دې کار نه به لاس وانخلم ترڅو چې خدای پاك یا خپل دین بریالی کړي او یا زه په دې لار کښې ومرم ». ابوطالب چې دخپل وراره غمجن حالت ولېد نو تسلي یې ورته ورکړه او وې ویل : زویه ! هرڅه چې غواړې هغه وکړه او هرڅه چې دې خوښ وي هغه وایه ، قسم په خدای چې تا به هیڅکله د ښمن ته ونه سپارم .

د تیمور وارثانو د خپل پلار د وخت رسیدلو تاوانونو د جبرانولو په خاطر د ودانیو، فرهنګ او پوهنې په پراختیاکښې د قدر وړ - خدمتونه وکړل.

شاهرخ د (۷۲) کلونو په عمر او تر (۴۳) کلونو پاچهي وروسته د خراسان په ری کښې په (۱۴۴۶) م کال وفات شو.



# سلطان ابوسعید (۱۴۴۶-۱۴۶۷م)

تر شاهرخ وروسته د تیموري دولت کمزورتیا پیل شوه، ځکه که څه هم تر شاهرخ وروسته الغبیک په هرات کښې حکومت ته ورسېدخو د پر زر د خپل زوی لخوا ووژل شو، او زوی یې هم د خپلو کړو سزا ولیدله. لکه څنګه چې مخکښې موو ویل چې د تیمور تر مړینې وروسته د تیمور لخوا فتح شوي ملکونه د هغه د اولادې ترمنځ وویشل شو، ماوراءالنهر چې اوس د شوروي مستعمره ده سلطان ابوسعید ته ورسېد. سلطان ابوسعید د خپل قدرت د پراخولو په غرض د خراسان د نیولو په فکر کښې شو. لومړی یې خپل مخالفین غلي کړل او بیا یې آذربایجان او فارس ونیو، او په خپله کورنۍ کښې یې د راپیدا شوو مخالفتونو له امله ووژل شو.

# سلطان حسین بایقرا

د سلطان حسین بایقرا پلار غیاث الدّین منصور نومېده چې د بایقرا زوی د عمر شیخ لمسی او د ګوډ تیمور کړوسی ؤ . سلطان حسین بایقرا په هرات کښې زېږېدلی ؤ او په «۲۱» کلنۍ په «۸٦۳» هق کال کښې پاچا شو . د پاچهۍ په «۳۸» کلونو کښې یې په پوره تدبیر او د خپل هوښیار او په کارپوه وزیر امیرعلی شیرنوایي په همکارۍ چې د خپلې زمانې غښتلی عالم و حکومت وکړ . د دې پاچا په وخت کښې هرات زیاته ترقي وکړه، او د عالمانو او پوهانو مرکز شو . د دغه پاچا په زیاتو هڅونو او کوښښ سره په هرات کښې د نجوم او ادبیاتو په څانګو کښې ډېر زیات پرمختګ وشو .

د سلطان حسین بایقرا تر مړینې وروسته د هغه دوه زامن په - هرات کښې پاچیان شو ، خو په خپل منځ کښې مخالفتونه یې د دې سبب شول چې محمد خان شیباني پاچا تر هرات پورې د خراسان شمالي

ولایتونه ونیسي ، اود سلطان حسین زامن ایران ته وتینستیدل ،
چې هلته د شاه اسمعیل صفوي د لاس اله شول .

په دغه ترتیب سره د خراسان د څاوندیانو پښه په هرات کښې د تیموري اولادې د بې اتفاقۍ له امله زموږ هیواد ته را اوښه شوه .



# پنځم فصل

## د پردیو دولتونو نفوذ (۱٦ - ۱۸ میلادي پېړۍ)

لکه چې مخکښې مو د افغانستان د تیموري پاچیانو په بحث کښې ووېل چې د سلطان حسین بایقرا تر زمانې وروسته د تاج او تخت پر سر د هغه د اولادې د اختلافونو له امله هغوی د محمدخان شیباني[1] په مقابل کښې مقاومت ونکړای شو او صفوي دولت ته و تښتېدل. نو ځکه کورنۍ کمزورتیا له یوې خوا او د خراسان (افغانستان) په ګاونډېو ممالکو کښې د سیاسي پېښو پېښېدل له بلې خوا نه ټول زمونږ د هېواد په ضرر تمام شو، او دولت خپل مرکزیت او اداري قوت له لاسه ورکړ.

په ماوراءالنهر کښې په (۱۵۰۰) م کال شیباني دولت، په ایران کښې په (۱۵۰۲) م کال صفوي دولت او په هندوستان کښې په (۱۵۲۵) م کال کښې بابري حکومت جوړ شو، چې شیباني دولت زمونږ د وطن په شمالي

(۱) محمد خان شیباني یو ظالم پاچا و.

ولایتونوکښې ، صفوي دولت په لوېدیځو ولایتونوکښې ، او بابري دولت په ختیځوولایتونوکښې وا کمن شو، اود پردیودا واکمني کابوتر دوه (۲) پېړیو پورې وه .

محمدخان شیباني د افغانستان د شمالي ولایتونو ترفتح کولو وروسته ترمرو او د ایران مشهد پورې مخ په وړاندې لاړ ، خو د افغانستان په یو تاریخي ښار مرو کښې یې د ایران د پاچا شاه اسمعیل صفوي له لاسه ماتې وخوړه ، اوهغه ښارونه چې محمدخان شیباني فتح کړي و شاه اسمعیل[1] صفوي ونیول .

---

(۱) شاه اسمعیل صفوی د ایران پاچا وچې د شیعه مذهب بنسټ ایښودونکی هم بلل کېږي .

# مغل په هند او افغانستان کې

بابر چې د ګوډ تیمورله اولادې څخه دی په اول وخت کې د فرغانې حاکم ؤ، کله چې شیباني دولت جوړ شو نو د بابر سره وجنګېد او هغه یې د فرغانې څخه وایست. بابر د افغانستان په لوري راغی، افغانان پرې راټول شول او هغه یې د کابل پاچا کړ، بابر چې پوهو بنیار سړی ؤ د پښتنو زړور عسکر یې دځان سره یوځای کړل او پر هندوستان یې حمله وکړه او په هند کښې یې د پښتنو د لودی کورنۍ وروستي پاچا سلطان ابراهیم ته ماتې ورکړه.

بابر په دغه ډول د پښتنوله بې اتفاقۍ نه ګټه واخیسته، او په افغانستان کښې یې د مغولو پاچهي جوړه کړه، او ډیلی او ګره یې ونیوله او خپل پایتخت یې د کابل څخه اګرې ته یوړ. په دې وخت کښې د پښتنو هغه مشران چې د بابر سره یې مرسته کړې وه په خپلې غلطۍ وپوهېدل چې پردي نه خپلېږي.

همايون، جلال الدين اکبر، جهانګير، شاه جهان او اورنګزيب

د بابر د اولادې وو چې په هند کښې يې پاچهي وکړه.

ځينې ازادي بخښونکي پاڅونونه او غورځنګونه چې په دې جبهه کې

د مغلو په خلاف وشو په لاندې ډول دي:

## پير روښان:

د پيرروښان نوم بايزيد او يو وطن خوښونکی او زړه ور سړی ؤ

چې د بابر د پاچهی په وخت په (۱۵۲۵) م کال په وزيرستان کښې وزيږيد

او د رواج شو علومو تر تحصيل وروسته يې خارج ته سفر وکړ. کله

چې بېرته وطن ته راستون شو نو د مخالفتونو په نسبت د مهمند و دغوري

خېلو په تپه کښې د ېره شو او د پيرۍ او مريدۍ لړۍ يې جوړه کړه او

په تبليغ او لارښوونه يې شروع وکړه، چې ډېر ژر مشهور شو. او د

دوستانو شمېر يې دومره زيات شو چې د هند مغولي حکومت ترې

په اندېښنه کښې شو.

پير روښان د مغولي پاچا جلال الدين اکبر په حکم ونيول شو او بندي

شو، پیرروښان خپل ځان له بند څخه خلاص کړ او د خپلو مریدانو سره په ګډه تیراته لاړ او هلته یې خلک پخپلو سوزناکو نطقو ښواو خبرو د مغلو په خلاف راوپارول. په هغه جنګ کښې چې د پیرروښان او مغولي لښکر ترمینځ وشو، مغولي لښکرته یې سخته ماتې ورکړه او پیرروښان د جلال آباد په لور روان شو. په هغې مقابله کښې چې د ده د مغولي دولت د نائب الحکومه محسن خان سره وکړه پیرروښان ماتې وخوړه پیرروښان چې د اوبړي (دوبي) په حکومه کښې د قواو د بیا ترتیبولو هلې ځلې کولې د «۷۳» کلونو په عمر وفات شو.

## خوشحال خان خټک:

خوشحال خان چې جنګیالی سړی او د قلم څښتن وُ د خپل پلار شهباز خان په ځېر د قوم مشر هم وُ.

یو شمېر غازیان او مجاهدین د نومیالي شاعر او جنګیالي مشر خوشحال خان خټک تر رهبرۍ او مشرۍ لاندې راغونډ شول، او د (۱۶۶۸) نه تر (۱۶۷۰م).

کال پورې د اورنګزېب د لښکرو سره چې د شاه جهان نه وروسته شوی و جګړې وجنګېدل. پښتنو قواو د خوشحال خان ترمشرۍ لاندې د تاترې په جنګ کښې د دښمن شلو پښت زره کسیزه اردو خوره وره کړه او همدا رازئې د نوشهرې، ګنداب او خانج په جنګونو کښې د دښمن لښکرې وځپلې، مګر بیائې هم ماتې وخوړه، او د خوشحال خان زامن عبدالقادر او اشرف او لمسي ئې کاظم شیدا او علیخان په هندوستان کښې بندیان شول او په همغه ځای کښې وفات شول.

خوشحال خان هم د (۷۸) کلنۍ په عمر په (۱۶۹۱) میلادي کال په خپل وطن کښې له فاني دنیا نه سترګې پټې کړې.

او نه به دي ځان ته پرېږدم .

## داسلام لومړني شهیدان او د حضرت بلال شکنجه کېدل:

قریشو کافرو ته معلومات وشو چې حضرت پیغمبر «ص» يې پښنهادونه نه مني او ابوطالب يې له ملاتړڅخه لاس نه اخلي او هغه اسلام ته د - دعوت څخه نه منع کوي، دنوي دين او د حضرت پيغمبر «ص» د پيغمبرۍ آوازه هم په هرځای کښې مشهوره شوه او کافرو دخپل ځان لپاره تر ټولو زيات خطر حس کاوه ، قريشو دخدای د رسول سره د مخالفت کولو او د - مسلمانانو د زورولو او شکنجه کولو لپاره پخپلو کښې تړون وکړ او په بې رحمۍ او بې له کرکې يې په حضرت پيغمبر «ص» او د هغه په يارانو يې زور زياتي ته ملا وتړله ، کله چې د مکې کافرانو کوم مسلمان وليد ور باندې به راتول شول . په ډبرو به يې ويشته ، په لرګيو به يې واهه او په بېلا بېل ډول شکنجو به يې ځورولو ، هغه مسلمانان چې د قومي او قبيلوي خپلوانو له کبله کمزوري وه او يا مريان وه له هرچانه زيات شکنجه کېدل . ابوجهل

## تمرین :

۱- کوډ تېمور په کوم کال پاچا شو او کوم ملکونه یې فتح کړل ؟

۲- په فتح شوو ممالکو کښې د کوډ تېمور سلوک څنګه وه ؟

۳- د تېمور د اولادې څخه څوک په افغانستان کې پاچاشو او کوم ښاریې پایتخت وټاکه ؟

٤- د هېواد په ودانولو کې د شاهرخ میرزا سترخدمتونه شرح کړئ ؟

٥- د سلطان حسین بایقرا وزیر څه نومېده ؟

٦- د تېمور اولاده په افغانستان کښې ولې راښکوره شوه، او د کومو پردیو قواوله خوا ؟

۷- د کوډ تېمور د اولادې د دولت تر ښکوربېدو وروسته کومو کاونډیو هېوادونو په افغانستان حمله وکړه ؟

۸- د شیباني دولت بنسټ ایښودونکی څه نومېده ؟

۹- د پیر روښان او خوشحال مبارزې په کومه جبهه کښې او د کوم بهرني قدرت پرخلاف وې ؟

# شپږم فصل

## په قندهار کښې د هوتکیانو د دولت جوړېدل:

صفویانو چې شیبانیانو ته په افغانستان کې ماتې ورکړې وه ، قندهار او سیستان یې ترخپل لاس لاندې کړل او د صفوي دولت نایب الحکومه د قندهار په مرکز کښې کښېناست او د خلکو ځورول یې شروع کړل .

په قندهار کښې صفوي نایب الحکومه بیګله بیګی یوا ځینی کار داوه چې د پښتنو قبیلو ترمنځ یې د بېلتون او بې اتفاقۍ تخم شینده چې پښتانه بالاخره له دې حالت نه ستړي شو او د بیګله بیګی په خلاف یې پاڅون وکړ.

بیګله بیګی د خپلې ناکامۍ موضوع د اصفهان مرکز ته ولیکله . هغوی د ده په عوض ګرګین ګرجي په قندهار کښې مقرر کړ.

شاه حسین صفوی چې په (۱٦۹٤) میلادي کال د ایران پاچا شو ، ګرجستاني ښوونځي خوښونکی ګرګین یې د ګرجستان د کارنیزیون

او شلونړو ایرانیو عسکرو سره قندهار ته واستوه .

ګرګین سخت زړی اوظالم سړی ؤ، اوپه عصبانیت سره یې حکومت وکړ، اود ابدالی قبیلو مشران یې په دار کړل ، اوپاتې یې دخپل اصلی ټاټوبی (وطن) څخه فرار کړل ، او د ابدالیانوځمکې یې غلجایي قبیلي ته ورکړې .

ګرګین لکه د باري دولت په خبریوته امتیاز ورکاوه او د بل ګرېوان ته یې پرې لاس اچوه .

غلجي چې د د ښمن دې اتفاق اچولو په حقیقت ونوښه پوهېدل ورو ورو یې په قندهار کښې د ایران دواکمنی په مقابل کښې کلک مخالفت شروع کړ .

په دې وخت کښې دغلجیو د قبیلې یوسړی چې میرویس خان نومېده رهبري اومشري په غاړه واخېسته .

میرویس خان غښتلی اراده ، ښه ذکاوت درلوده چې په سیاست پوه اود وطن آزادی سره یې زیاته علاقه درلوده .

## میرویس خان هوتک (۱۷۰۹-۱۷۱۵م)

میرویس خان د شاه عالمخان زوی په (۱٦٧٣م) کال د قندهار په ښار کښې وزېږېد او د قندهار په ښاري محیط کښې لوی شو. میرویس خان چې له نژدې نه پرخپلو هېواد والو ظلم او استبداد لیده، او پوهېده چې که د قبیلو ترمینځ بې اتفاقي له مینځه لاړه شي او د قوم خورې ورې قواوې راغونډې شي نو بهرنی واکمني به هم له مینځه لاړه شي. میرویس خان هڅه وکړه چې دا ستره دنده سرته ورسوي، او د دښمن سره یې د دوستۍ راشه درشه پیل کړه او ګرګین یې دومره د ځان خواته راواړوه چې هېڅ نوی کار یې پرته د میرویس خان د سلامشورې نه نه کاوه.

میرویس خان د قبیلو مشرانو سره خپل صمیمي اړیکي او خواخوږي همساتله. ګرګین په قوم کښې د میرویس د محبوبیت څخه وېرېده او د قبیلو د نورو مشرانو سره یې ایران ته د صفوي دولت د دښمن په نامه ولېږه. میرویس خان د ګرګین له ټولو څخه ځان خلاص کړ او د صفوي

شاه حسین څخه یې د حج د فریضې ادا کولو اجازه واخیسته، او مکې معظمې ته لاړ. هلته د حجاز د علماو سره د افغانستان د روان حالت په باره کښې وغږېده او د حج د مناسکو تر سرته رسولو وروسته اصفهان ته راستون شو.

صفوي شاه حسین میرویس خان ته د قندهار د ښار د ښاروالۍ وظیفه ورکړه او د هغه فرمان یې کړکین ته واستوه. میرویس خان به چې د قندهار په لار په هر ځای کښې د دیني عالمان او د قبیلو مشران لیدل، د صفوي دربار د فساد او د خپل هېواد د آزادۍ اخیستلو خبرې به یې ورته کولې د قبیلو د پیوستون او د یوموټي کېدو سپارښتنه به یې کوله او هر څوک یې په قندهار کښې د عمومي اقدام ورځې ته په انتظار کړل.

د میرویس خان عاقلانه فعالیت تر (۱۷۰۹م) کال پورې دوام وکړ.
تر څو چې آخر د قبیلو مشرانو په پټه جرګه کښې تصمیم ونیو چې کړکین د خپلو عسکرو سره یو ځای له مینځه لاړ شي او آزاد حکومت جوړ شي
د میرویس خان پرلپسې کوښښونه او قابلیت د دې سبب شو

چې جرګې په خونړۍ سره په ټولو ملي قواوکښې د میرویس خان رهبري ومنله. نقشه داسې ماهرانه وکښل شوه چې ترمعلوم ساعت پورې د حکومت د خلکو پوتن يې هم په لږ څه ونه پوهېده، اوهغه داسې وه چې د بلوچواو کاکړو قومونو د ګرګین د زور د راکمولو په خاطر د مالیه ورکولو څخه سرغړونه وکړه. ګرګین وربانديې د ګوابښ کولو لپاره راووت خو په همدې وخت کښې وربانديې میرویس خان د خپلو ملګرو سره په نیمه شپه خپرې راکېښودې چې د ګرګین سره ترې یو دښمن هم ژوندے پاتې نه شو، او بیايې د قندهار ښار داخل ته ورودانګل اوترسبا پورې ترې د دښمن د قواو پوتن هم ژوندي پاتې نه شواو د ښمن په بېخي ورکېدو سره په ښا ورځ د لومړي ځل لپاره په (۱۷۰۹م) کال د آزاد ملي حکومت اعلان وشو.

# هوتکي شاه محمود (۱۷۱٦-۱۷۲۵م)

کله چې شاه محمود د خپل پلار میرویس خان تر وفاتېدو وروسته په قندهار کښې پاچا شو، د هرات په ولایت کښې عبدالله خان ابدالي او د هغه زوی اسدالله خان ایراني حکومت را نسکور کړ او د ملي حکومت دخپلواکۍ اعلان یې وکړ او د هرات خواوشا یې هم د ایران د دولت له نفوذ څخه پاکه کړې وه..

شاه محمود د فراه په لور عسکر وښکل او کله چې د فراه په لار کښې د اسدالله خان او شاه محمود جنګ شو نو شاه محمود غالب شو، او اسدالله خان د جنګ په میدان کښې ووژل شو.

# د ایران نیول (۱۷۲۱ - ۱۷۲٦ م)

شاه محمود د اته ویشتو زرو (۲۸۰۰۰) عسکرو او یوې کمزورې توپخانې سره د کرمان ترنیولو وروسته اصفهان ته روان شو. د ایران په مرکز اصفهان کښې شپیته زره عسکر او یوه لویه توپخانه موجود وه. شاه محمود د اصفهان څخه لس میله لرې (ګلنا باد کې) قرارګاه ونیوه. صفوي شاه حسین ته چې خپل ځان کمزورې برېښېده نو د افغانستا پاچا ته یې پېشنهاد وکړ چې اوه دېرش زره (۳۷۰۰۰) د طلا سکې به درکړم خو شا محمود ورسره ونه منلې او ترې یې وغوښتل چې د اوسني خراسان ولایت چې د افغانستان پخواني جز دی، افغانستان ته بېرته پرېږدي، لیکن غوښتنه یې ونه منل شوه. له دې کبله د ایران پنځوس زره (۵۰۰۰۰) لښکر د دربندي اوسترې توپخانې سره د شاه محمود د جنګېدو لپاره راووت په روان جنګ کښې د ایرانیانو توپخانه د افغانانو لاس ته راغله او تر هغې وروسته د توپ او ټوپکو ډزې د ایرانیو قواو په لور متوجه شوې او د

ایران دارډو دمرو شمېر پېنځه ویشتو زرو (۲۵۰۰۰) تنوته ورسېد،
او نورلښکرد اصفهان ښارته په شالاندي، او د ایران دولت په دغه ترتیب
سره اته میاشتې په ښارکښې کلابند پاتې شو.
صفوي شاه حسين تسلمېدو ته غاړه کېښوده او د خپلو لوړرتبه صاحب
منصبانو او درباریانو سره په خپله د شاه محمود قرارګاه ته راغی. شاه محمود
د دغه پاچا په راتلو د هغه هرکلي او درناوی ته راپاخېد. دافغانستان
کم عمره پاچا چې (۲۵) کلن ؤ د ایران په عمر پاخه او بوډا پاچاته چې
د یرش کاله یې پاچهي کړې وه په خبرو کښې د پلار خطاب وکړ او په
ادب سره یې وویل: « د دنیا شان او شوکت، مقام او سترتوب داسې
بې وفا دی. زه درته تسلي درکوم چې ستا د مصلحت نه پرته به کوم
کار ونکړم ».

صفوي شاه حسین ورته په ځواب کښې د ایران د پاچهي تاج پرسرکېښود
او مبارکي یې ورکړه، او شاه محمود د اصفهان پایتخت خپل پایتخت وټاکه
او خپل ورور شاه حسین یې د قندهار حکومت ته واستوه.

شاه محمود وروسته ترنهو کلونو حکومت په عصبي ناروغتیا اخته شواو د (۲۸) کلونو په عمر مړشو .

ځرنګه چې د هوتکو په کورنۍ کښې دا بدګماني را پیدا شوه چې شاه محمود د شاه اشرف لخوا وژل شوی دی، نو د هوتکیانو کورنۍ دوه ټوټې (ډلې) شوه .

شاه حسین چې خپل ځان دوروروجا نشین باله په قندهارکښې یې دپاچهۍ اعلان وکړاو شاه اشرف د ایران پاچا شو، او په دغه ډول قندهار د-ایران څخه جلا شو.

## تمرین :

۱- په قندهار کښې د صفوي دولت حکمرانان څه نومیدل او د خلکو سره یې سلوك څنګه وه ؟

۲- میرویس خان څوک ؤ او خپله مبارزه یې د دښمن په خلاف په څه ترتیب شروع کړه ؟

به په قریشو کښې کړځېده او هرچا به چې ایمان راوړ په هغه به یې ګوابښ وکړ او ویل به یې چې ډول ډول ستونزې به درته پیدا کړم .

کفارو به په سخته کړې کښې حضرت عمار بن یاسر دخپلې مور او پلار سره په تودو او سوزونکو شګو کښې څملول او ډول ډول شکنجې به یې ورکولې ، حضرت پیغمبر(ص) به ورباندې تېرېده او ویل به یې :
« ای د یاسر کورنۍ صبر وکړئ خدای تاسو سره د جنت وعده کړې ده » .

بالاخره حضرت یاسر او د ښځه سمیه د مشرکانو د سختو شکنجو له امله شهیدان شول ، سمیه لومړۍ ښځه ده چې د اسلام په لاره کښې شهیده شوې ده .

حضرت بلال حبشي د امیه بن خلف غلام چې مسلمان شوی وه د امیه ، ابوجهل او نورو مشرکانو لخوا په سخته کړې کښې د لمر تر وړانګو لاندې په تودو شګو څملول کېده او شکنجه به ورکول کېده ، امیه به غټه اوسره شوې تیږه د حضرت بلال (رض) په سینه کښېښوده او تهدید به یې کړ چې د اسلام واوړې ، خو حضرت بلال به د امیه تر شکنجو

# تاریخ











کال: ۱۳۶۶ هـ ش

# تاریخ

دشپږم ټولګي لپاره

کال: ١٣٦٦ هش

**مؤلفين؛**

عبدالوکیل «عمري» او محمد اکرام

**مشورتي غړي؛**

باطن شاه «صافی» او روژه‌گل «وحدتي»

# دشپږم ټولګي د تاریخ کتاب

## فهرست

بسم الله الرحمن الرحیم

# سریزه

## تاریخي دورې :

تاریخي دورې په دوه عمده برخو ویشل کېږي .

لومړی تر تاریخ د مخه دوره : د خط تر اختراع د مخه وخت ته تر تاریخ دمخه دوره وایي .

دویمه تاریخي دوره : دخط له پیدا کېدو څخه ترنن ورځ پورې د تاریخي دورې په نامه یادېږي . هغه وخت چې دخط د ایجاد (۳۳۰۰ ق م) څخه شروع کېږي او د حضرت عیسیٰ علیه السّلام ترزېږېدو پورې دوام کوي د قبل المیلاد (ق م) دورې په نامه یادېږي .

دخط توري په (۳۳۰۰ ق م) کال په منځنۍ ختیځ کښې د فنیقیانو لخوا اختراع شول مسیحیانو دخپل تاریخ مبداء دحضرت عیسیٰ علیه السّلام د زېږېدو له ورځې څخه شروع کړې ده . چې تر اوسه پورې یې (۱۹۸۷) کلونه تېر شوي دي ، او د حضرت عیسیٰ علیه السّلام تر زېږېدو وروسته وخت ته میلادي (م) سنه هم وایي .

مسلمانانو د خپل تاریخ مبداء د مکې معظمې څخه مدینې منورې ته د حضرت محمّد صلّی الله علیه وسلّم د هجرت د ورځې څخه و ټاکله ، چې تر اوسه پورې یې (۱۳۶۶) هجري لمریز (ه ، ش) کلونه تېر شوي دي ، او د (۱۴۰۷) هجري قمري (ه ، ق) کال شمېرون خوري .

د حضرت محمّد صلّی الله علیه وسلّم د هجرت نېټه د (۶۲۱) میلادي کال سره برابره ده .